# علم النحو

## پښتو

مولف:

مولانا مشتاق احمد چرتهاؤلي

ژباړن:

محمد رسول سعيد

صداقت کتب خانه کندهار

# علم النحو

تالیف

مشتاق احمد چرتهاولي

ژباړه:

محمد رسول سعید

صداقت کتب خانه

## د کتاب پېژندنه

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | :علم النحو |
| مؤلف | : مشتاق احمد چرتهاولي |
| ژباړن | : محمد رسول سعید |
| خپرندوی | : صداقت خپرندویه ټولنه/ کندهار |
| کمپوز / ډیزاین | : صداقت د کتاب چاپولو اداره |
| چاپ کال | : ۱۳۹۳ش - ۲۰۱۴ |
| چاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه |
| کچه | : ۵۰/۱۳×۲۱ سانتي متره |
| د مخونو شمېر | : ۸۰ مخه |

د تر لاسه کولو پته:

**صداقت خپرندویه ټولنه**

کندهار --افغانستان

اړیکي: ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ

**د علم النحو تعريف:** علم النحو هغه علم دئ چي په هغه سره د اسم، فعل او حرف يو ځاى كولو او جملې جوړولو تركيب او د هري كلمې د آخري حرف حالت معلوميږي .

**د علم النحو فائده:** د دغه علم فائده داده چي انسان د عربي ژبي په ويلو او ليكلو كي د هر ډول غلطي څخه خوندي سي. د مثال په توګه: زَيْدٌ- دار- دَخَلَ- فِيْ . دغه څلور كلمې دي. اوس د دغه څلورو كلمو يو ځاى كول او د هغو څخه جمله جوړول او په صحيح توګه ادا كول . دا هر څه د علم النحو څخه زده كيږي .

**د علم النحو موضوع:** د دغه علم موضوع كلمه او كلام دي .

## فصل : كلمه او كلام

كومه خبره چي د انسان د ژبي څخه ووځي هغه ته لفظ وايي. بيا كه لفظ معنى لرونكى وي نو د هغه نوم موضوع دى او كه بې معنى وي نو هغه مهمل دى .

په عربي ژبه كي د موضوع لفظ دوه ډولونه دي:

۱. مفرد .

۲. مرکب.

**مفرد**: هغه یوازي لفظ ته وايي چي یوه معنی وښيي او هغه ته کلمه هم وايي.

د کلمې (لفظ) درې ډولونه دي:

۱. اسم.
۲. فعل.
۳. حرف.

## اسم:

هغه کلمه ده چي د بل لفظ سره د یو ځای کېدو ماسوا خپله معنی ورکړي او په هغه کي د درو زمانو (ماضي، حال، استقبال) څخه یوه زمانه هم نه وي. لکه: رَجُلٌ. عِلْمٌ. مِفْتَاحٌ.

د اسم درې ډولونه دي:

۱. جامد.
۲. مصدر.
۳. مشتق.

**جامد**: هغه اسم دی چي نه د بل لفظ څخه جوړ سوی وي او نه بل لفظ د ده څخه جوړ سوی وي. لکه: رَجُلٌ، فَرَسٌ او داسي نور.

**مصدر**: هغه اسم دی چي خپله د بل لفظ څخه نه جوړیږي مګر د ده څخه ډېر الفاظ جوړیږي لکه: نَصْرٌ، ضَرْبٌ او داسي نور.

**مشتق**: هغه اسم دی چي د مصدر څخه جوړ سوی وي لکه: د ضَرْبٌ څخه ضَارِبٌ او د نَصْرٌ څخه نَاصِرٌ.

## فعل:

فعل هغه کلمه ده چي د بل لفظ سره د یو ځای کېدو ماسوا معنی ورکړي او په هغه کي یوه زمانه هم وي لکه: نَصَرَ يَنْصُرُ - ضَرَبَ يَضْرِبُ.

د فعل څلور ډولونه دي:

۱. ماضي.
۲. مضارع.
۳. امر.
۴. نهي.

تعریفونه یې په علم الصرف کي بیان سوي دي.

## حرف:

حرف هغه کلمه ده چي معنی ئې د بل لفظ سره د یو ځای کېدو ماسوا نه معلومیږي لکه: مِنْ. فِيْ. تر څو چي د دغه حروفو سره اسم یا فعل یو ځای نه سي نو هیڅ فائده نه ځیني اخیستل کیږي. لکه: خَرَجَ زَيْدٌ مِنَ الدَّارِ- دَخَلَ عَمْرٌ فِي الْمَسْجِدِ.

د حرف دوه ډولونه دي:

۱. عامل.
۲. غیر عامل.

**مركب**: هغه لفظ دی چي د دوو یا زیاتو کلمو په یو ځای کېدو سره جوړ سي ، د مرکب هم دوه ډولونه دي :

١. مرکب مفید .

٢. مرکب غیر مفید .

**مرکب مفید**: هغه دی چي کله ویونکی یوه خبره وکړي نو اورېدونکی ته د تېري پیښي خبر یا د یوې خبري طلب معلوم وي. لکه: ذَهَبَ زَيْدٌ ، زید ولاړی. إِيْتِ بِالْمَاءِ ، اوبه راوړه .

د اولي خبري څخه اورېدونکی ته د زید د تګ خبر وسو او د دوهمي خبري څخه معلومه سوه چي ویونکی اوبه غواړي، مرکب مفید ته جمله او کلام هم وایي .

جمله پر دوه ډوله وي:

١. جمله خبریه .

٢. جمله انشائیه.

**جمله خبریه**: هغه جملې ته وایي چي په هغه کي ویونکي ته رېښتونی یا دروغجن ویل کیدای سي. جمله خبریه پر دوه ډوله ده:

١. جمله اسمیه.

٢. جمله فعلیه .

**جمله اسمیه**: هغه جملې ته وایي چي اوله برخه یې اسم وي او دوهمه برخه اسم وي یا فعل . لکه : زَيْدٌ عَالِمٌ او : زَيْدٌ عَلِمَ . په دغه جملو کي هره جمله اسمیه خبریه ده او اوله برخه یې مسند الیه ده چي مبتدا ورته وایي او دوهمه برخه یې مسند ده چي خبر ورته وایي .

د جمله اسمیه خبریه په معنی کې د غه الفاظ وي : یم، سو، وو، دی.

**جمله فعلیه**: هغه جمله ده چې اوله برخه یې فعل وي او دوهمه برخه فاعل وي، لکه: عَلِمَ زَيْدٌ. سَمِعَ بَكْرٌ، په دغه جملو کې هره جمله فعلیه ده او اوله برخه یې مسند ده چې فعل ورته وایي او دوهمه برخه یې مسند الیه ده چې فاعل ورته وایي.

مسند الیه هغه دی چې هغه ته د یو اسم یا فعل نسبت وسي او مبتداء ځکه ورته وایي چې په هغه سره د جملې ابتداء (شروع) کیږي.

مسند هغه دی چې بل ته نسبت وکړي او خبر ځکه ورته وایي چې دا د مخکې اسم د حال خبر ورکوي.

اسم مسند او مسند الیه دواړه کیدای سي لکه: زَيْدٌ عَالِمٌ. په دغه جمله کې زید او عالم دواړه اسمونه دي او د عالم نسبت زید ته کیږي. ځکه زید مسند الیه او عالم مسند سو.

فعل یوازي مسند وي او مسند الیه نه کیږي، لکه: زَيْدٌ عَلِمَ او عَلِمَ زَيْدٌ. په دغه دواړو جملو کې د علم نسبت زید ته کیږي ځکه علم مسند او زید مسند الیه دی،

حرف نه مسند وي او نه مسند الیه.

**ترکیب**: د جمله اسمیه ترکیب داسي کیږي: زَيْدٌ مبتداء، عَالِمٌ خبر، د مبتداء او خبر په یو ځای کیدو سره جمله اسمیه خبریه سوه.

د جمله فعلیه ترکیب داسي کیږي: عَلِمَ فعل، زَيْدٌ فاعل، د فعل او فاعل په یو ځای کیدو سره جمله فعلیه خبریه سوه.

## ترکیب یې وکړئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلطَّعَامُ حَاضِرٌ | اَلْمَاءُ بَارِدٌ | اَلْاِنْسَانُ حَاکِمٌ | جَلَسَ زَیدٌ |
| ذَهَبَ عَمْرٌو | شَرِبَتْ هِنْدٌ | اَکَلَ خَالِدٌ | نَصَرَ بَکْرٌ |

**جمله انشائیه**: هغه جمله ده چي په هغه کي ویونکي ته رښتونی او دروا غجن نه سي ویل کیدای ځکه د انشاء معنی د یو شي د پیدا کولو ده او د غه جمله هم د یو کار پیدا کول ښیي. رښتیا او درواغ ته په هغه کي دخل نه وي. لکه: اِضْرِبْ، یعني وهل پیدا کړه.

## انشائیه جمله څو قسمونه لري

۱. امر، لکه: اِضْرِبْ. ته وهل وکړه.

۲. نهي، لکه: لَاتَضْرِبْ. ته وهل مه کوه.

۳. استفهام، لکه: هَلْ ضَرَبَ زَیْدٌ. ایا زید وهل وکړه.

۴. تمنی، لکه: لَیْتَ زَیْدًا حَاضِرٌ. کاش زید حاضر وای.

۵. ترجی، لکه: لَعَلَّ عَمْرًوا غَائِبٌ. کیدای سي عمرو غائب وي.

۶. عقود یعني معاملات، لکه: بِعْتُ وَاشْتَرَیْتُ. ما وپلورل او ما رانیول.

۷. نداء. لکه: یَااَللّٰه . اې الله.

۸. عرض. لکه: اَلَاتَأْتِیْنِی فَاُعْطِیْکَ دِیْنَارًا .ته ولي ما ته نه راځې چي تاته اشرفي درکړم.

۹. قسم. لکه: وَاللهِ لَاَضْرِبَنَّ زَیْدًا .قسم په خدای. زه به زيد خامخا ووهم.

۱۰. تعجب. لکه: مَااَحْسَنَهُ . یو شي هغه ښکلی کړ. اَحْسِنْ بِهٖ . هغه څومره ښکلی دی.

**مرکب غیر مفید**: هغه دی چي کله ویونکی یو څه ووایي او اورېدونکی د هغه د خبري څخه فائده. خبر او یا طلب حاصل نه کړي.

د مرکب غیر مفید درې ډولونه دي:

۱– مرکب اضافي. ۲– مرکب بنائي. ۳– مرکب منع صرف.

۱: مرکب اضافي: هغه دی چي د یوه اسم اضافت بل اسم ته وسي . د کوم اسم اضافت چي سوی وي هغه ته مضاف او کوم اسم ته چي اضافت سوی وي هغه ته مضاف الیه وایي. لکه: غُلَامُ زَیْدٍ، دلته د غلام اضافت زید ته سوی دی نو غلام مضاف او زید مضاف الیه سو.

۲– مرکب بنائي: هغه دی چي دوه اسمونه یو سوی وي او په دواړو کي هیڅ نسبت اضافي یا اسنادي نه وي. همدارنګه د اول اسم دوهم اسم ته د تړون ورکولو یو حرف وي لکه د اَحَدَعَشَرَ څخه تر تِسْعَةَ عَشَرَ پوري چي په اصل کي اَحَدٌ وَعَشَرٌ وَتِسْعَةٌ وَعَشَرٌ وه.

**فائده**: د مرکب بنائي پر دواړو اسمو باندي همیشه فتحه (زور) وي

ماسیوا د اِثْنَا عَشَرَ څخه چي د هغه اوله برخه بدلیږي .

۳: مرکب منع الصرف: هغه دی چي دوه اسمونه یو کړي او د دواړو اسمو د ترڅون لپاره یو حرف نه وي لکه: بَعْلَبَکَ . د یو ښار نوم دی چي د بعل او بک څخه مرکب دی، بعل د یو بت نوم دی او بک د ښار د جوړونکي پاچا نوم دی .

د مرکب منع صرف اوله برخه همېشه مفتوح وي او دوهمه برخه بدلیږي.

مرکب غیر مفید همېشه د جملې یوه برخه وي او خپله پوره جمله نه وي لکه: غُلَامُ زَيْدٍ حَاضِرٌ ـ جَاءَ اَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا ـ اِبْرَاهِيْمُ سَاكِنُ بَعْلَبَكَ.

د هر یوه ترکیب داسي دی: غلام مضاف. زید مضاف الیه. مضاف او مضاف الیه دواړه مبتدا. حاضر خبر . د مبتداء او خبر په یو ځای کېدو سره جمله اسمیه خبریه سوه.

جاء فعل، احد عشر ممیز. رجلا تمیز. تمیز او ممیز فاعل سوه . فعل او فاعل جمله فعلیه خبریه سوه .

ابراهیم مبتداء. ساکن مضاف. بعلبک مضاف الیه. مضاف او مضاف الیه خبر. مبتدا او خبر جمله اسمیه خبریه سوه.

## ترکیب یې وکړئ

قَلَمُ زَيْدٍ نَفِيْسٌ قَامَ اَرْبَعَةَ عَشَرَ رَجُلًا خَالِدٌ تَاجِرُ حَضَرَ مَوْتَ

# فصل

## د جملې ذاتي او صفاتي ډولونه

څرګنده دې وي چې هیڅ یوه جمله تر دوو کلمو کمه نه وي. یا خو دواړې کلمې په لفظونو کې موجود وي لکه: ضَرَبَ زَیْدٌ. او یا تقدیرًا وي لکه: اِضْرِبْ. چې اَنْتَ پکښې پټ دی او په لفظونو کې موجود نه دی.

په جمله کې تر دوو زیاتې کلمې هم وي مګر د زیاتوب هیڅ حد یې نشته. کله چې د جملې لفظونه زیات وي نو په هغو کې باید اسم او فعل جلا کړل سي او باید وکتل سي چې معرب دی که مبني. عامل دی که معمول. او دا هم باید معلومه سي چې د کلماتو تعلق په خپلو کې څه ډول دی ددې لپاره چې مسند او مسند الیه ظاهر سي او د جملې صحیح معنی معلومه سي.

جمله د ذات په اعتبار پر څلور ډوله ده:

۱- اسمیه. ۲- فعلیه. ۳- شرطیه. ۴- ظرفیه.

۱. اسمیه لکه: زَیْدٌ قَائِمٌ.

۲. فعلیه لکه: قَامَ زَیْدٌ.

۳. شرطیه لکه: اِنْ تُکْرِمْنِيْ اُکْرِمْکَ.

۴. ظرفیه لکه: عِنْدِیْ مَالٌ.

د صفت په اعتبار د جملې شپږ ډولونه دي:

۱. مبینه. چي مخکي په ښکاره بیان کړي لکه: اَلْکَلِمَةُ عَلٰی ثَلٰثَةِ اَقْسَامٍ۔ اِسْمٌ وَفِعْلٌ وَحَرْفٌ۔ . په دغه مثال کي د اولي جملې مطلب واضح نه وو چي هغه کوم دري ډولونه دي. دوهمه جملې هغه بیان کړل چي هغه ډولونه اسم. فعل او حرف دي.

۲. مُعَلله. چي د مخکي جملې علت بیان کړي. لکه چي په حدیث شریف کي دي: لَاتَصُوْمُوْا فِیْ هٰذِهِ الْاَیَّامِ فَاِنَّهَا اَیَّامُ اَکْلٍ وَشُرْبٍ وَبِعَالٍ. تاسو روژه مه نیسئ په دغه پنځو ورځو کي (اخترونه او د تشریق ورځي) ځکه هغه د خوراک. څښاک او جماع ورځي دي د دغه حدیث شریف په اولي جمله کي د پنځو ورځو د روژو نیولو څخه منعه سوې ده او علت یې په دوهمه جمله کي بیان سوی دی چي هغه د خوراک. څښاک او جماع ورځي دي.

۳. معترضه. چي د دوو جملو په منځ کي بې پیوسته واقع وي لکه: قَالَ اَبُوْحَنِیْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ اَلنِّیَّةُ فِی الْوُضُوْءِ لَیْسَتْ بِشَرْطٍ . په دغه مثال کي رحمة الله علیه جمله معترضه ده چي د مخکي او وروسته کلام سره یې هیڅ تعلق نسته.

۴. مستانفه. هغه جمله ده چي په هغه سره نوی کلام شروع سي لکه: اَلْکَلِمَةُ عَلٰی ثَلٰثَةِ اَقْسَامٍ . دغه جملې ته ابتدائیه هم وایي.

۵. حالیه. هغه جمله ده چي حال واقع وي. لکه: جَاءَنِیْ زَیْدٌ وَهُوَرَاکِبٌ.

٦. معطوفه. هغه جمله ده چي پر مخکي جملې عطف کړل سي لکه: جَاءَنِیْ زَیْدٌ وَذَهَبَ.

# فصل: د اسم علامې (نښې)

د اسم یوولس علامې (نښې) دي:

۱) الف لام يې په سر كې وي لكه: اَلْحَمْدُ.

۲) حرف جر يې په سر كې وي لكه: بِزَيْدٍ.

۳) تنوين يې په آخر كې وي لكه: زَيْدٌ.

۴) مسند اليه وي لكه: زَيْدٌ قَائِمٌ.

۵) مضاف وي لكه: غُلَامُ زَيْدٍ.

۶) مصغر وي لكه: قُرَيْشٌ. رُجَيْلٌ.

۷) منسوب وي لكه: بَغْدَادِيٌّ. هِنْدِيٌّ.

۸) تثنيه وي لكه: رَجُلَانِ.

۹) جمع وي لكه: رِجَالٌ.

۱۰) موصوف وي لكه: رَجُلٌ كَرِيْمٌ.

۱۱) حركت لرونكې تاء ورسره يو ځای وي لكه: ضَارِبَةٌ.

**فائده**: ښكاره دي وي چې فعل تثنيه يـ جمع نه وي او د فعل كومې صيغې چې تثنيه يا جمع بلل كيږي هغه د فاعل په اعتبار وي لكه: فَعَلَا يَفْعَلَانِ. هغه دوو خلكو وكړ. هغه دوه خلك يې كوي.

همدارنګه : فَعَلُوْا . يَفْعَلُوْنَ . ډېرو خلګو وکړه. ډېر خلګ يې کوي .
د دغه جملو دا مطلب نه دی چې دوه کاره يې وکړه يا ډېر کارونه يې
وکړه . کاريې يو کړی دی مګر کوونکي يې دوه يا ډېر دي .

## د فعل علامې (نښي)

د فعل اته علامې (نښي) دي :

۱) قد يې په سر کي وي لکه : قَدْ ضَرَبَ . بېشکه هغه وهل کړي دي .

۲) سين يې په سر کي وي لکه: سَيَضْرِبُ . ژر دی چي وهل به وکړي.

۳) سوف يې په سر کي وي لکه: سَوْفَ يَضْرِبُ. ژر دی چي وهل به وکړي.

۴) حرف جزم باندي داخل وي لکه : لَمْ يَضْرِبْ .

۵) ضمير متصل وي لکه: ضَرَبْتُ.

٦) په اخر کي تاء ساکن وي لکه: ضَرَبَتْ.

۷) امر وي لکه: اِضْرِبْ

۸) نهي وي لکه : لَاتَضْرِبْ .

د حرف علامه داده چي په هغه کي د اسم او فعل علامه نه وي او
حقيقت دادی چي په کلام کي حرف مقصد نه وي بلکه هغه د ربط لپاره
وي او دغه ربط کله په دوو اسمو کي وي لکه: زَيْدٌ فِي الدَّارِ . يا په يوه
اسم او يوه فعل کي وي لکه: كَتَبْتُ بِالْقَلَمِ. يا په دوو فعلو کي وي
لکه: اُرِيْدُ اَنْ اُصَلِّي.

# فصل : معرب او مبني

د آخري حرف د بدلون په اعتبار د کلمې دوه ډولونه دي. ١: معرب. ٢: مبني.

**معرب:** هغه کلمه ده چي آخري حرف يې همېشه بدلیږي. نو په کوم سبب چي بدلیږي هغه ته عامل وايي او کوم شی چي په آخري حرف سره بدلیږي هغه ته اعراب وايي. اعراب پر دوه ډوله دی ١: حرکتي لکه ضمه. فتحه . کسره. ٢: حرفي لکه: الف. واو. یا.. آخري حرف ته محل اعراب وايي لکه: جَاءَزَيْدٌ. په دغه جمله کي جاء عامل دی او زید ضمه لري، په: رَاَيْتُ زَيْدًا. کي رایت عامل دی او پر زید فتحه ده او په: مَرَرْتُ بِزَيْدٍ .کي باء حرف جار عامل دی او پر زید باندي کسره ده. نو زید معرب دی او د زید آخري حرف يعني دال محل اعراب دی او ضمه. فتحه. کسره اعراب دي.

**مبني :** هغه کلمه ده چي همېشه پر يوه حال وي يعني د عامل په بدلېدو سره د هغه په آخري حرکت کي هيڅ بدلون نه راځي لکه: جَاءَ هَذَا۔ رَاَيْتُ هَذَا۔ مَرَرْتُ بِهَذَا . په دغه مثالو کي هذا مبني دی چي په هر حالت کي يو ډول دی.

مبني آن باشد که ماند برقرار　　　معرب آن باشد که گردد بار بار

# د مبني او معرب اقسام

په ټولو اسمونو کي يوازي اسم غير متمکن مبني دی او په افعالو کي فعل ماضي ، امر حاضر معروف او فعل مضارع چي په هغه کي نون جمع مؤنث او نون تاکيد وي او ټول حروف مبني دي . اسم متمکن معرب دی په شرط ددې چي په ترکيب کي واقع وي او بېله ترکيبه مبني دی متمکن ځکه ورته وايي چي د متمکن معنی د ځای ورکولو ده او څرنګه چي دغه اسم اعراب ته ځای ورکوي نو متمکن ورته وايي او دغه مبني د اصل مشابه هم نه وي .

فعل مضارع معرب ده، په شرط ددې چي د نون جمع مؤنث او نون تاکيد څخه خالي وي . ددغه دوو ډولو څخه ماسوا نور معرب نه وي يعني يو هغه اسم چي د مبني اصل مشابه نه وي او يو فعل مضارع چي د نون جمع مؤنث او نون تاکيد څخه خالي وي .

**اسم غيرمتمکن:** هغه اسم دی چي چي د مبني اصل مشابه وي . مبني الاصل درې دي.۱: فعل ماضي. ۲: امر حاضر معروف. ۳: ټول حروف ، دغه مشابهت پر څو ډوله وي يا خو په اسم کي د مبني اصل معنی وي لکه په اين کي د همزه استفهام معنی وي او همزه استفهام حرف مبني الاصل دی ، او په هيهات کي د ماضي معنی ده او رويد د امر حاضر په معنی دی ، ماضي او امر مبني الاصل دي . يا لکه حروف چي محتاج وي، همداسي په اسم غيرمتمکن کي احتياج وي لکه اسماء موصوله. اسماء اشاره چي د صله او مشار اليه محتاج وي ، يا په اسم غير متمکن کي تر درو حروفو کم وي لکه :من، ذا، يا د هغه يوه برخه حرف ته شامل وي لکه احد عشر، چي په اصل کي احد وعشر وو .

# فصل: د اسم غير متمكن اقسام

د اسم غيرمتمكن يا مبني اته قسمونه دي. ۱: مضمرات. ۲: اسماء موصوله. ۳: اسماء اشاره. ۴: اسماء افعال. ۵: اسماء أصوات. ۶: اسماء ظروف. ۷: اسماء كنايات. ۸: مركب بنائي.

د مضمراتو پنځه قسمونه دي. ۱: مرفوع متصل. ۲: مرفوع منفصل. ۳: منصوب متصل. ۴: منسوب منفصل. ۵: مجرور متصل.

ضمير مرفوع متصل (يعني د فاعل هغه ضمير چي د فعل سره وي) څوارلس دي:

ضَرَبْتُ ضَرَبْنَا ضَرَبْتَ ضَرَبْتُمَا ضَرَبْتُمْ ضَرَبْتِ ضَرَبْتُمَا ضَرَبْتُنَّ

ضَرَبَ ضَرَبَا ضَرَبُوْا ضَرَبَتْ ضَرَبَتَا ضَرَبْنَ

ضمير مرفوع منفصل (يعني د فاعل هغه ضمير چي د فعل څخه جلا وي) څوارلس دي:

اَنَا. نَحْنُ. اَنْتَ. اَنْتُمَا. اَنْتُمْ. اَنْتِ. اَنْتُمَا. اَنْتُنَّ. هُوَ. هُمَا. هُمْ. هِيَ. هُمَا. هُنَّ

پاملرنه! ضمير مرفوع د اسم فاعل څخه ماسوا په نورو مرفوعاتو كي هم راځي دلته يوازي د اساني لپاره د فاعل ذكر سوى دى.

ضمير منصوب متصل (يعني د مفعول هغه ضمير چي د فعل سره وي) څوارلس دي:

ضَرَبَنِى ضَرَبَنَا ضَرَبَكَ ضَرَبَكُمَا ضَرَبَكُمْ ضَرَبَكِ ضَرَبَكُمَا ضَرَبَكُنَّ ضَرَبَهُ

ضَرَبَهُمَا ضَرَبَهُمْ ضَرَبَهَا ضَرَبَهُمَا ضَرَبَهُنَّ

ترکيب: ضرب فعل. په هغه کي هو ضمير فاعل. د نون وقايه يا، ضمير متکلم مفعول. فعل د خپل فاعل او مفعول به سره جمله فعليه خبريه سوه.

ضمير منصوب منفصل (يعني د مفعول به هغه ضمير چي د فعل څخه جلا وي) څوارلس دي:

اِيَّایَ اِيَّانَا اِيَّاکَ اِيَّاکُمَا اِيَّاکُمْ اِيَّاکِ اِيَّاکُمَا اِيَّاکُنَّ اِيَّاهُ اِيَّاهُمَا اِيَّاهُمْ اِيَّاهَا اِيَّاهُمَا اِيَّاهُنَّ.

پاملرنه! ضمير منصوب د اسم مفعول څخه ماسوا په نورو منصوباتو کي هم راځي دلته يوازي د اساني لپاره د مفعول ذکر سوی دی.

ضمير مجرور متصل هم څوارلس دي او پر دوه ډوله دي: يو هغه چي حرف جر ور باندي داخل وي او دوهم هغه چي مضاف ورباندي داخل وي:

ضمير مجرور په حرف جر سره:

لِی. لَنَا. لَکَ. لَکُمَا. لَکُمْ. لَکِ. لَکُمَا. لَکُنَّ. لَهُ. لَهُمَا. لَهُمْ. لَهَا. لَهُمَا. لَهُنَّ.

ضمير مجرور په اضافت:

دَارِیْ. دَارُنَا. دَارُکَ. دَارُکُمَا. دَارُکُمْ. دَارُکِ. دَارُکُمَا. دَارُکُنَّ. دَارُهُ. دَارُهُمَا. دَارُهُمْ. دَارُهَا. دَارُهُمَا. دَارُهُنَّ

**فائده**: کله د جملې اول ضمير غائب بيله مرجع واقع وي نو که چيري هغه ضمير د مذکر وي نو ضمير شان ورته وايي او که ضمير مؤنث وي

نو ضمير قصه، د ضمير وروسته جمله د هغه تفسير کوي لکه: انه زيد قائم. په تحقيق سره زيد ولاړ دی، او : انها زينب قائمة، په تحقيق سره قصه داده چي زينب ولاړه ده .

## اسماء موصوله

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلَّذِیْ | اَلَّذَانِ | اَلَّذَیْنِ | اَلَّذِیْنَ | |
| هغه يو سړی | هغه دوه خلک | هغه دوه خلک | هغه ډېر خلک | |
| اَلَّتِی | اَلَّتَانِ | اَللَّتَیْنِ | اَللَّاتِيْ | اَللَّوَاتِيْ |
| هغه يوه ښځه | هغه دوې ښځي | هغه دوې ښځي | هغه ډېري ښځي | هغه ډېري ښځي |
| مَا | مَنْ | اَيّ | اَيَّةٌ | |
| څشي | څوک | کوم | کومه | |

او الف لام په معنی د الذي اسم فاعل او اسم مفعول دي. لکه: الضارب په معنی د الذي ضَرَبَ. او المضروب په معنی د الذي ضُرِبَ، او ذو په معنی د الذي د بني طی قبيلې په ژبه کي. لکه جَاءَ ذُوْ ضَرَبَکَ يعني اَلَّذِیْ ضَرَبَکَ. اَیٌّ وَاَیَّةٌ معرب دي او بېله اضافته نه استعماليږي .

**فائده**: اسم موصول هغه اسم دی چي د جملې پوره جز او بېله صلې نه راځي او صله جمله خبريه وي چي په هغه کي ضمير موصول ته راګرځېدونکی وي لکه : جَاءَ الَّذِی اَبُوْهُ عَالِمٌ . راغلی هغه سړی چي پلار يې عالم دی .

ترکیب: جاء فعل، الذي اسم موصول، ابو مضاف، ه ضمیر مضاف الیه . مضاف او مضاف الیه مبتداء، عالم خبر، مبتدا او خبر جمله اسمیه صله سوه، صله او موصول اسم فاعل د جاء، جاء فعل د خپل فاعل سره جمله فعلیه خبریه سوه .

## ترکیب یې وکړئ:

جَاءَ الَّذِی ضَرَبَکَ، رَاَیْتُ الَّذِیْنَ ضَرَبَاکَ، مَرَرْتُ بِالَّذِیْنَ ضَرَبُوکَ، اَکْرِمْ مَنْ اَکْرَمَکَ، قَرَاْتُ مَاکَتَبْتُ.

## اسماء اشاره

اسماء اشاره پر دوه ډوله دي، ۱: اشاره قریب، ۲: اشاره بعید .

اشاره قریب (نژدې) دادي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| مذکر | هٰذَا | هٰذَانِ | هٰؤُلَاءِ |
| | دغه یو سړی | دغه دوه خلک | دغه ډیر خلک |
| مؤنث | هٰذِهِ | هَاتَانِ | هٰؤُلَاءِ |
| | دغه یوه ښځه | دغه دوې ښځې | دغه ډیرې ښځې |

اسماء اشاره بعید (لیري) دادي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| مذکر | تِلْكَ | ذَانِكَ | اُولٰئِكَ |
| | هغه یو سړی | هغه دوه خلک | هغه ډیر خلک |
| مؤنث | تِلْكَ | تَانِكَ | اُولٰئِكَ |
| | هغه یوه ښځه | هغه دوې ښځې | هغه ډیرې ښځې |

**فائده**: په کوم لفظ چي اشاره وسي هغه اسم اشاره او چا ته چي اشاره وسي هغه مشار اليه بلل کيږي لکه: هَذَا الْقَلَمُ نَفِيْسٌ . په دغه مثال کي هذا اسم اشاره او قلم مشار اليه دی.

ترکيب: هذا اسم اشاره. القلم مشار اليه. اشاره او مشار اليه مبتدا سوه او نفيس خبر سو. مبتدا او خبر جمله اسميه خبريه سوه.

## ترکيب يې وکړئ:

هَذَا الْبَيْتُ قَدِيْمٌ - هَؤُلَاءِ إِخْوَانُ سَعِيْدٍ - هَذِهِ الْمَرْأَةُ صَالِحَةٌ -

هَاتَانِ الْبِنْتَانِ أُخْتَانِ - أُولَئِكَ طُلَّابُ الْمَدْرَسَةِ

## اسماء افعال

اسماء افعال هغه اسمونه دي چي د فعل په معنی وي. اسماء افعال پر دوه ډوله دي:

۱: د امر حاضر معنی لکه: رُوَيْدَ: (پرېږده). بَلْهُ: (پرېږده). حَيَّهَلْ: (متوجه سه). هَلُمَّ: (راسه). دُوْنَكَ: (واخله). عَلَيْكَ: (لازم کړه). هَا: (ونيسه).

۲: د فعل ماضي په معنی لکه: هَيْهَاتَ: (ليري سو). شَتَّانَ: (بېل سو). سَرْعَانَ: (تلوار يې وکړ).

## اسماء اصوات

لکه: أُخْ أُخْ: (ټوکی)، أُفْ: (د فرياد آواز)، بَخْ: (د واده بڼغ)، نَخْ: (د

اوښ کښېښنولو آواز)، غَاقَ: (د کارګه آواز).

## اسماء ظروف

**۱: ظرف زمان لکه:** إِذْ- إِذَا- مَتَى- كَيْفَ- اَيَّانَ- اَمْسِ- مُذْ- مُنْذُ- قَطُّ- عَوْضُ- قَبْلَ- بَعْدَ.

إِذْ: دغه لفظ دماضي لپاره راځي که څه هم پر مستقبل داخل وي او د هغه وروسته جمله اسميه او جمله فعليه دواړه راتلای سي. لکه: جِئْتُكَ اِذْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَاِذَ الشَّمْسُ طَالِعَةٌ.

إِذَا: دغه لفظ د مستقبل لپاره راځي او ماضي هم د مستقبل په معنی کوي لکه: اِذَاجَاءَنَصْرُاللهِ. او: آتِيْكَ اِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ. او کله د مفاجات لپاره هم راځي لکه: خَرَجْتُ فَاذَا السَّبُعُ وَاقِفٌ. زه ولاړم نو ناڅاپه درنده ولاړه وه.

مَتٰى: دغه لفظ د شرط او استفهام لپاره راځي لکه: مَتَى تَصُمْ اَصُمْ. کله چي ته روژه نیسې نو زه یې هم نیسم. دا د شرط مثال دی. او: مَتَى تُسَافِرُ. ته کله سفر کوې؟ دا د استفهام مثال دی.

كَيْفَ: دغه لفظ د حال د پوښتني لپاره راځي لکه: كَيْفَ اَنْتَ / فِي اَيِّ حَالٍ اَنْتَ. ستا حال څنګه دی؟

اَيَّانَ: دغه لفظ د وخت د پوښتني لپاره استعمالیږي لکه: اَيَّانَ يَوْمُ

الدِّينِ . د جزاء ورځ کومه ده؟ .

اَمْسِ: لکه: جَاءَنِي زَيْدٌ اَمْسِ . زيد ما ته پرون راغلی .

مُذْ- مُنْذُ: دغه دواړه الفاظ د کار لومړني وخت ښيي لکه: مَارَاَيْتُهُ مُذْيَوْمِ الْجُمْعَةِ . ما هغه د جمعې د ورځي څخه نه دی لیدلی، او د ټول وخت لپاره هم راځي لکه: مَارَاَيْتُهُ مُذْيَوْمَيْنِ. ما هغه د دوو ورځو څخه نه دی لیدلی.

قَطُّ: دغه لفظ د ماضي منفي د تاکید لپاره راځي لکه: مَاضَرَبْتُهُ قَطُّ. ما هغه هیڅکله نه دی وهلی .

عَوْضُ: د دغه لفظ د مستقبل منفي د تاکید لپاره راځي لکه: لَااَضْرِبُهُ عَوْضُ . زه هغه هیڅکله نه وهم .

قَبْلَ- بَعْدَ: چي مضاف وي او مضاف اليه د متکلم په نیت کي وي. لکه د الله ﷻ دغه قول: لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَ مِنْ بَعْدُ اَیْ مِنْ قَبْلِ كُلِّ شَيْءٍ وَ مِنْ بَعْدِ كُلِّ شَيْءٍ ، او لکه: اَنَا حَاضِرٌ مِنْ قَبْلُ . يعني مِنْ قَبْلِكَ مَتَى تُجِيْئُنَا بَعْدُ. يعني بَعْدَ هٰذَا.

۲: ظرف مکان: حَيْثُ. قُدَّامُ. خَلْفَ. تَحْتَ. فَوْقَ. عِنْدَ. اَيْنَ. لَدَى لَدُنْ.

حَيْثُ: دغه لفظ زيات وختونه جملې ته مضاف وي لکه . اِجْلِسْ حَيْثُ

زَيْدٌ جَالِسٌ يعني اِجْلِسْ مَكَانَ جُلُوسِ زَيْدٍ.

قدَّامُ. خَلْفَ: لكه: قَامَ النَّاسُ قُدَّامُ وَخَلْفُ. يعني قُدَّامَهُ وَخَلْفَهُ.

تَحْتَ، فَوْقَ، لكه: جَلَسَ زَيْدٌ تَحْتَ وَصَعِدَ عَمْرٌ وَفَوْقَ اَىْ تَحْتَ الشَّجَرَةِ وَفَوْقَ الشَّجَرَةِ مَثَلاً.

عِنْدَ، لكه: اَلْمَالُ عِنْدَ زَيْدٍ. د زيد سره مال دى.

اَيْنَ. اَنّٰى: د استفهام لپاره راځي لكه: اَيْنَ تَذْهَبُ. ته چيري ځې؟ اَنّٰى تَقْعُدُ، ته چيري كښېنې؟ . او يا د شرط لپاره راځي لكه: اَنّٰى تَجْلِسْ اَجْلِسْ. چيري چي ته كښېني هلته زه كښېنم. اَنّٰى تَذْهَبْ اَذْهَبْ . چيري چي ته ځې هلته زه ځم. او اَنّٰى كَيْفَ .په معنى هم راځي كله چي د فعل وروسته راسي لكه د الله جل جلاله دغه قول: فَأْتُوا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ اَىْ كَيْفَ شِئْتُمْ. نو تاسو راسئ خپل كښت ته څرنګه چي وغواړئ.

لَدَى. لَدُنْ: دغه دواړه د عند په معنى راځي او فرق يې دادى چي په عند كي د يو شي قبضه او ملک كېدل كافي وي او هر وخت ورسره موجود كېدل ضروري نه وي لكه: اَلْمَالُ عِنْدَ زَيْدٍ . د زيد سره مال دى، كه په خزانه كي وي او كه د هغه سره موجود وي، او: اَلْمَالُ لَدَى زَيْدٍ ، هغه وخت ويل كيږي چي مال د زيد سره وي، نو عند عام دى او لدى ولدن خاص دي، ښه فكر وكړه.

۱ - **فائده**: قَبْلُ. بَعْدُ. تَحْتُ. فَوْقُ. قُدَّامُ. خَلْفُ. حَيْثُ. قَطُّ. عَوْضُ. مبني پر ضمه وي، او: اَيَّانَ. كَيْفَ. اَيْنَ. مبني پر فتحه دي او اَمْسِ مبني پر كسره دى. پاته ظروف مبني پر سكون دي.

۲ - **فائده**: غير مبني ظروف چي جملې يا اذا ته مضاف وي نو د هغو پر فتحه مبني کېدل جائز دي لکه د الله ﷻ دغه قول: هَٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصَّادِقِيْنَ صِدْقُهُمْ. دلته د يوم مفتوح ويل جائز دي لکه يَوْمَئِذٍ حِيْنَئِذٍ.

## اسماء كنايات

يعني هغه اسم چي پر يو مبهم شي دلالت کوي لکه: کَمْ - كَذَا. دغه الفاظ د عدد څخه کنايه دي او: كَيْتَ - ذَيْتَ. د خبري کنايه ده.

مركب بنائي لکه: اَحَدَعَشَرَ.

# فصل: اسم منسوب

د اسم په آخر کي د نسبت لپاره یاء مشدده او تر هغه مخکي د کسرې په زیاتولو سره چي کوم اسم جوړیږي هغه ته اسم منسوب وایي.

د اسم په آخر کي د نسبتي یاء راوړلو څخه دا معلومیږي چي د هغه سره د یو شي تعلق دی لکه: بَغْدَادِيٌّ. د بغداد اوسېدونکی. یا د بغداد پیدا سوی شی. او: هِنْدِيٌّ. د هند اوسېدونکی یا د هند پیدا سوی شی. صَرْفِيٌّ. د صرف په علم پوه. نَحْوِيٌّ. د نحو په علم پوه.

لاندي د نسبت اړوند یو څو قاعدې لیکل کیږي:

۱: که الف مقصوره د کلمې په دریم یا څلورم ځای کي واقع وي نو هغه په واو بدلیږي لکه د عِیسٰی څخه عِیسَوِيٌّ. د مَوْلَی څخه مَوْلَوِيٌّ. او که الف مقصوره په پنځم ځای کي واقع وي نو هغه ایسته کیږي لکه د مُصْطَفَی څخه مُصْطَفِيٌّ.

۲: د الف ممدوده دوهم الف په واو بدلیږي لکه د سَمَاءٌ څخه سَمَاوِيٌّ او د بَیْضَاءُ څخه بَیْضَاوِيٌّ.

۳: په کوم اسم کي چي یاء مشدده د مخکي څخه موجود وي هلته د نسبتي یاء راوړلو ضرورت نسته لکه شَافِعِيٌّ. د یو امام نوم دی. او شَافِعِيٌّ د شافعي مذهب لرونکو ته هم وایي.

۴: که په اسم کي د تانیث تاء وي نو هغه د نسبت پر وخت ایسته کیږي

لکه د کُوْفَةٌ څخه کُوْفِیٌّ او د مَکَّةٌ څخه مَکِیٌّ. همدارنګه کوم اسم چي د فَعِیْلَةٌ او فُعَیْلَةٌ پر وزن وي د هغه تاء هم ایسته کیږي لکه د مَدِیْنَةٌ څخه مَدَنِیٌّ او د جُهَیْنَةٌ څخه جُهَنِیٌّ.

۵: کوم اسم چي د فَعِیْلٌ پر وزن وي او آخر یې یاء مشدد وي نو اول خو یاء په واو بدلیږي او واو ته د فتحې په ورکولو سره یاء نسبت راوړل کیږي لکه د عَلِیٌّ څخه عَلَوِیٌّ او د نَبِیٌّ څخه نَبَوِیٌّ.

۶: که چیري یاء څلورم ځای د کسرې وروسته واقع وي نو د یاء ایسته کول او په واو بدلول دواړه جائز دي لکه د دِهْلِیٌّ څخه دِهْلِیٌّ او دِهْلَوِیٌّ.

۷: که د یو اسم د آخر څخه حرف اصلي ایسته سوی وي نو د نسبت په وخت کي هغه بېرته راوړل کیږي لکه د اَخٌ څخه اَخَوِیٌّ. د اَبٌ څخه اَبَوِیٌّ او د دَمٌ څخه دَمَوِیٌّ.

۸: د ځینو الفاظو نسبت د قیاس خلاف راځي لکه د نُوْرٌ څخه نُوْرَانِیٌّ. د حَقٌّ څخه حَقَّانِیٌّ. د رَیٌ څخه رَازِیٌّ او د بَادِیَةٌ څخه بَدَوِیٌّ.

# فصل : اسم تصغير

په کوم اسم کي چي د کوچنيوالي يا سپکاوي معنى وي هغه اسم تصغير بلل کيږي .

د اسم تصغير ضروري قاعدې

۱ : د درې حرفيزه اسم تصغير د فُعَيْلٌ پر وزن راځي لکه د رَجُلٌ څخه رُجَيْلٌ او د عَبْدٌ څخه عُبَيْدٌ .

۲ : د څلور حرفيز اسم تصغير د فُعَيْعِلٌ پر وزن راځي لکه د جَعْفَرٌ څخه جُعَيْفِرٌ .

۳ : د پنځه حرفيز اسم تصغير د فُعَيْعِيْلٌ پر وزن راځي په شرط د دې چي پنځم حرف يې مد لين وي لکه د قِرْطَاسٌ څخه قُرَيْطِيْسٌ . او که څلورم حرف مدلين نه وي نو د هغه پنځم حرف ايسته کيږي او تصغير يې د فُعَيْعِلٌ پر وزن راځي لکه د سَفَرجَلْ څخه سُفَيْرِجٌ .

۱ - **فائده**: د مؤنث سماعي تاء په تصغير کي ظاهريږي لکه د اَرْضٌ څخه اُرَيْضَةٌ او د شَمْسٌ څخه شُمَيْسَةٌ .

۲ - **فائده**: د کوم اسم آخري حرف چي حذف سوی وي هغه په تصغير کي بېرته راځي لکه اِبْنٌ - بُنَيٌّ - اِبْنٌ چي په اصل کي بَنُوٌ وه .

# فصل: معرفه او نکره

د اسم د عموم او خصوص په اعتبار پر دوه ډوله دی:

۱. معرفه.

۲. نکره.

**معرفه**: هغه اسم دی چې د یو خاص شي لپاره اېښودل سوی وي. د معرفه اووه ډوله دي:

۱: ضمیر: هغه اسم دی چې د نامه پر ځای ویل کیږي لکه: هُوَ. اَنَا. نَحْنُ.

۲: علم: هغه اسم دی چې د یو خاص ځای، سړي او یا یوشي نوم وي لکه: زَيْدٌ، دِهْلِيْ. زَمْزَمْ.

۳: اسم اشاره: یعني هغه اسم چې په هغه سره یو شي ته اشاره وسي لکه: هَذَا. ذَالِكَ.

۴: اسم موصول: یعني هغه اسم چې د صلې سره یو ځای د جملې جز سي لکه: اَلَّذِی. اَلَّتِی.

۵: معرفه باللام: یعني هغه نکره اسم چې الف لام ورباندي داخل کړي او معرفه یې کړي لکه: اَلرَّجُلُ.

۶: هغه اسم چې ددغه پنځو ډولو څخه یوه ته مضاف وي. مثالونه یې په ترتیب سره دادي:

غُلَامُهُ. فَرَسُکَ. کِتَابِي. غُلَامُ زَيْدٍ. سَاكِنُ الدَّهْلِي. مَاءُ زَمْزَمَ. كِتَابُ هَذَا. فَرَسُ ذَالِکَ. غُلَامُ الَّذِيْ. عِنْدَکَ. بِنْتُ الَّتِي. ذَهَبْتُ. قَدَمُ الرَّجُلِ.

۷: معرفه په نداء، يعني هغه اسم چي د بللو په وجه معرفه سي لکه: يَارَجُلُ، په دغه جمله کي يا ء حرف نداء دی او رجل منادي دي.

**نکره**: هغه اسم دی چي غير معين يعني عام شي لپاره ايښودل سوی وي لکه: فَرَسٌ، د يو خاص آس نوم دی بلکه هر آس ته په عربي ژبه کي فرس وايي، او که فَرَسُ زَيْدٍ يا فَرَسُ هَذَا ووايي نو خاص او معرفه سو.

## فصل: مذکر او مؤنث

اسم د جنس په اعتبار پر دوه ډوله دی:

۱. مذکر (نارینه).

۲. مؤنث (ښځینه).

**مذکر** : هغه اسم دی چې په هغه کې د تانیث علامه نه لفظي او نه تقدیري وي لکه: رَجُلٌ. فَرَسٌ.

**مؤنث** : هغه اسم دی چې په هغه کې د تانیث علامه لفظي یا تقدیري موجود وي.

د علامې په اعتبار د مؤنث دوه ډولونه دي: قیاسي او سماعي.

**مؤنث قیاسي**: هغه مؤنث دی چې د تانیث علامه په الفاظو کې موجود وي. د تانیث لفظي علامې درې دي:

۱: تاء، که حقیقتا وي لکه: طَلْحَةُ. یا حکما وي لکه: عَقْرَبُ. په دغه لفظ کې څلورم حرف د تانیث د تاء په حکم کې دی.

۲: الف مقصوره زائده لکه: حُبْلَی. صُغْرَی. کُبْرَی.

۳: الف ممدوده لکه: حَمْرَاءُ. بَیْضَاءُ.

**مؤنث سماعي** : هغه مؤنث دی چې د تانیث علامه پکښې پټه وي لکه اَرْضٌ او شَمْسٌ چې په اصل کې اَرْضَةٌ او شَمْسَةٌ وه. ځکه د دغه الفاظو تصغیر اُرَیْضَةٌ، شُمَیْسَةٌ دي او د تصغیر څخه د هغو اصلي حالت ظاهرېږي. نو داسې مؤنث چې تاء پکښې ظاهرا موجود نه وي او په اصل کې وي، مؤنث سماعي بلل کېږي.

د ذات په اعتبار د مؤنث دوه ډولونه دي : حقيقي او لفظي .

مؤنث حقيقي: هغه مؤنث دی چي د هغه په مقابله کي ساه لرونکي مذکر وي که څه هم د تانيث علامه پکښې وي يا نه وي لکه : اِمْرَأَةٌ . چي په مقابله کي يې رَجُلٌ دی. او اَتَانٌ (خره) چي په مقابله کي يې حِمَارٌ (خر) دی.

مؤنث لفظي هغه دی چي په مقابله کي يې ساه لرونکی مذکر نه وي لکه ظُلْمَةٌ. عَيْنٌ چي تصغير يې عُيَيْنَةٌ دی .

## فصل: واحد، تثنیه او جمع

اسم د شمېر په اعتبار پر درې ډوله دی:

۱. واحد.

۲. تثنیه.

۳. جمع.

**واحد**: هغه اسم دی چې پر یوه دلالت کوي لکه: رَجُلٌ، یو سړی، اِمْرَأَةٌ، یوه ښځه.

**تثنیه**: هغه اسم دی چې پر دوو دلالت کوي او تثنیه د واحد د صیغې په آخر کې د نون مکسور او نون څخه مخکې یاء ماقبل مفتوح یا الف ماقبل مفتوح په زیاتوب سره جوړېږي لکه: رَجُلَانِ، رَجُلَیْنِ.

**جمع**: هغه اسم دی چې د دوو څخه په زیاتو باندې دلالت کوي، د جمع صیغه د واحد په صیغه کې په لږ بدلون سره جوړېږي، دغه بدلون به یا لفظي وي لکه رِجَالٌ، مُسْلِمُوْنَ، او یا به تقدیري وي لکه فُلْکٌ پر وزن د قُفْلٌ، یوه کښتی، او فُلْکٌ پر وزن د اُسْدٌ کښتیاني.

### د جمع قسمونه

د لفظ په اعتبار د جمع دوه قسمونه دي: جمع مکسر او جمع سالم.

**جمع مکسر**: هغه جمع ده چې په هغه کې د واحد صیغه سلامته پاته نه سي لکه رِجَالٌ، چې د واحد صیغه یې رَجُلٌ، سلامت نه سو، بلکه د هغه د حروفو ترتیب په منځ کې د الف په راتلو سره مات سو، دغه جمعي ته جمع تکسیر هم وایي.

جمع سالم: هغه جمع ده چي د واحد صيغه يې سلامته وي . د جمع سالم دوه قسمونه دي :

۱: جمع مذکر سالم: هغه جمع ده چي په هغه کي واو ماقبل مضموم او نون مفتوح وي لکه مُسْلِمُوْنَ . يا ياء ماقبل مکسور او نون مفتوح وي لکه : مُسْلِمِيْنَ.

۲: جمع مؤنث سالم: هغه جمع ده چي په آخر کي يې الف او تاء وي لکه مُسْلِمَاتٌ.

د معنى په اعتبار د جمع دوه قسمونه دي: ۱: جمع قلت. ۲: جمع کثرت

جمع قلت: هغه جمع ده چي د لسو څخه پر کم ويل کيږي . د جمع قلت څلور وزنونه دي :

اَفْعُلٌ. لکه: اَكْلُبٌ د كَلْبٌ جمع .

اَفْعَالٌ ، لکه: اَقْوَالٌ د قَوْلٌ جمع .

اَفْعِلَةٌ. لکه اَطْعِمَةٌ . د طَعَامٌ جمع .

فِعْلَةٌ . لکه غِلْمَةٌ . د غُلَامٌ جمع .

او جمع سالم بيله الف او لامه په جمع قلت کي داخل ده لکه : عَاقِلُوْنَ، عَاقِلَاتٌ.

جمع کثرت : هغه ده چي پر لسو او يا تر لسو زياتو باندي ويل کيږي. د دغه جمعي وزنونه د جمع قلت د ذکر سوو وزنو څخه علاوه دي. په هغو کي لس مشهور وزنونه ليکل کيږي :

| وزن | واحد | جمع | وزن | واحد | جمع |
|---|---|---|---|---|---|
| فِعَالٌ | عَبْدٌ | عِبَادٌ | فُعَّالٌ | خَادِمٌ | خُدَّامٌ |
| فُعَلَاءُ | عَالِمٌ | عُلَمَآءُ | فَعْلٰى | مَرِيْضٌ | مَرْضٰى |
| اَفْعِلَاءُ | نَبِيٌّ | اَنْبِيَآءُ | فَعَلَةٌ | طَالِبٌ | طَلَبَةٌ |
| فُعُلٌ | رَسُوْلٌ | رُسُلٌ | فِعَلٌ | فِرْقَةٌ | فِرَقٌ |
| فُعُوْلٌ | نَجْمٌ | نُجُوْمٌ | فِعْلَانٌ | غُلَامٌ | غِلْمَانٌ |

**فائده:** د رباعي او خماسي اسمو جمعي زيات وختونه د منتهى الجموع پر وزن راځي او د هغه مشهورو وزنونه دري دي:

مَفَاعِلُ. لکه: د مَسْجِدٌ څخه مَسَاجِدُ.

مَفَاعِيْلُ. لکه د مِفْتَاحٌ څخه مَفَاتِيْحُ. .

فَعَائِلُ. لکه: د رِسَالَةٌ څخه رَسَائِلُ.

منتهى الجموع: هغه جمع ده چي د جمع د الف وروسته يې دوه حرفه وي لکه مَسَاجِدُ، يا يو حرف مشدد وي لکه: دَوَابُّ. يا دري حرفه وي او منځنى حرف ساکن وي لکه مَفَاتِيْحُ.

١ – **فائده:** ځيني جمع د واحد څخه ماسوا په بل لفظ کي راځي لکه د اِمْرَاَةٌ جمع نِسَاءٌ. او د: ذُوْ. جمع اُوْلُوْا.

١ – **فائده:** کله واحد اسم د جمع معنى هم ورکوي لکه: قَوْمٌ. رَهْطٌ.

رَکْبٌ . دغه اسمو ته اسم جمع وايي .

**۲ - فائده**: د ځينو الفاظو جمع د قياس خلاف راځي لکه د اُمٌّ جمع اُمَّهَاتٌ ، د فَمٌ جمع اَفْوَاهٌ ، د مَاءٌ جمع مِيَاهٌ ، د اِنْسَانٌ جمع اُنَاسٌ ، د شَاةٌ جمع شِيَاهٌ.

## فصل : منصر او غير منصرف

د معرب اسم دوه ډولونه دي :

۱. منصرف .

۲. غير منصرف .

**منصرف**: هغه اسم ته وايي چي په هغه کي د منع صرف اسباب نه وي او پر هغه درې حرکتونه او تنوين راځي لکه: زَيْدٌ.

**غير منصرف**: هغه اسم دی چي د منع صرف د اسبابو څخه دوه سببه پکښې وي، يا يو داسي سبب وي چي د دوو سببو پر ځای وي او پر هغه تنوين او کسره نه راځي .

د منع صرف اسباب نهه دي :

۱: عدل، ۲: وصف، ۳: تانيث، ۴: معرفه، ۵: عجمه، ۶: جـمع، ۷: ترکيب، ۸: وزن فعل، ۹: الف او نون زائدتان . چي مجموعه يې په لاندي دوو شعرو کي بيان سوي ده :

عَدْلٌ وَّوَصْفٌ وَّتَانِيْثٌ وَّمَعْرِفَةٌ   وَعُجْمَةٌ ثُمَّ جَمْعٌ ثُمَّ تَرْکِيْبٌ

وَالنُّوْنُ زَائِدَةٌ مِّنْ قَبْلِهَا اَلِفٌ   وَوَزْنُ فِعْلٍ وَهٰذَا الْقَوْلُ تَقْرِيْبٌ

د هريوه مثال په لاندې ډول دی :

په عُمَرُ کې دوه سببه دي. عدل او معرفه.

په ثَـلَاثَ کې دوه سببه دي. وصل او عدل.

په طَلْحَةُ کي کې دوه سببه دي. تانيث او معرفه.

په زَيْنَبُ کي کې دوه سببه دي. معرفه او تانيث.

په اِبْرَاهِيْمُ کي کې دوه سببه دي عجمه او معرفه.

په مَسَاجِدُ کي کې دوه سببه دي. جمع او منتهى الجموع.

په بَعْلَبَکَ کي کې دوه سببه دي. ترکيب او معرفه.

په اَحْمَدُ کي کې دوه سببه دي. وزن فعل او معرفه.

په سَکْرَانُ کي کې دوه سببه دي. الف او نون زائدتان او وصف.

۱ – **فائده**: د نحويانو په اصطلاح کې د يو اسم د خپلې اصلي صيغې ځخه وتل او بلې صيغې تللو ته عدل وايي. عدل پر دوه ډوله دی:

۱: عدل تحقيقي، ۲: عدل تقديري.

۱: عدل تحقيقي هغه دی چې هيڅ اصل يې نه وي لکه ثُلُثُ. چې معنى يې ده: درې درې، له دې ځخه معلومه سوه چې د دغه لفظ اصل ثَلَثَةٌ و ثَلَثَةٌ دی.

۲: عدل تقديري: هغه دی چې د هغه اصل نه وي بلکه منل سوی وي لکه عمر چې په عربو کې غير منصرف استعماليږي. مګر په دغه لفظ کې د غير منصرف کېدو يوازې يو سبب. معرفه دی. ځکه د استعمال

په لحاظ د دغه لفظ اصل عامر و منل سوی دی .

**۲ - فائده**: عجمه هغه اسم دی چي د عربي ژبي څخه ماسوا په بله ژبه کي علم وي او تر درو حروفو زيات وي لکه ابراهيم. يا دري حرفيز وي او منځنی حرف يې متحرک وي لکه شتر . (د يوې قلعې نوم دی) .

**۳ - فائده**: که چيري الف او نون زائدتان د اسم په آخر کي وي نو شرط دادی چي هغه اسم به علم وي لکه عثمان، عمران او سلمان. نو سعدان غير منصرف نه دی ځکه هغه علم نه دی بلکه ځنګلی وابنه ته وايي .

او که چيري الف او نون زائدتان د صفت په آخر کي وي نو شرط دادی چي د هغه مؤنث د فعلانة پر وزن نه وي لکه سکران. غير منصرف دی ځکه د هغه مؤنث سکرانة نه دی . او ندمان غير منصرف نه دی ځکه د هغه مؤنث ندمانة دی .

**۴ - فائده**: د وزن فعل څخه دا مطلب دی چي اسم د فعل پر وزن وي لکه احمد د افعل پر وزن دی .

**۵- فائده**: هر غير منصرف چي الف لام ورباندي راسي يا اسم ته مضاف وي نو د جر په حالت کي کسره ورکول کيږي لکه صَلَّيْتُ فِي مَسَاجِدِهِمْ وَ ذَهَبْتُ اِلَى الْمَقَابِرِ .

# فصل: مرفوعات

مرفوعات اته دي، ۱: فاعل. ۲: مفعول مالم يسم فاعله، ۳: مبتداء، ۴: خبر. ۵: د ان او داسي نورو خبر. ۶: د ما او لا اسم. ۷: د کان او داسي نورو اسم. ۸: د لام نفي جنس خبر.

۱: **فاعل**: هغه اسم دی چي هغه ته د فعل نسبت داسي کيږي چي هغه فعل د دغه اسم سره قائم دی لکه: قَامَ زَيْدٌ. ضَرَبَ عَمْرٌو.

فاعل پر دوه ډوله دی. ۱: ظاهر، ۲: مضمر. لکه په قَامَ زَيْدٌ کي اسم فاعل ظاهر دی او په ضَرَبْتُ کي فاعل ضمير دی.

ضمير هم پر دوه ډوله دی. ۱: ضمير بارز (ظاهر) لکه ضَرَبْتَ. ضَرَبْتُمَا. ضَرَبْتُمْ. ضَرَبْتِ. ضَرَبْتُمَا. ضَرَبْتُنَّ. ضَرَبْتُ. ضَرَبْنَا. ضَرَبَا. ضَرَبُوا. ضَرَبَتْ. ضَرَبَتَا. ضَرَبْنَ.

۲: ضمير مستتر (پټ) لکه په ضَرَبَ کي هو، او په کي ضَرَبَتْ هي، همدارنګه په يَضْرِبُ واحد مذکر غائب کي هو، په تَضْرِبُ واحد مؤنث غائب کي هي، په تَضْرِبُ واحد مذکر حاضر کي انت، او په اَضْرِبُ واحد متکلم کي انا، په نَضْرِبُ تثنيه و جمع متکلم کي نحن مستتر (پټ) دي.

د تثنيې په څلورو صيغو يَضْرِبَانِ. تَضْرِبَانِ او داسي نورو کي الف، او په يَضْرِبُوْنَ وَتَضْرِبُوْنَ. کي واو، او په يَضْرِبْنَ. تَضْرِبْنَ. کي نون،

او په تَضْرِبِيْنَ. کي یاء پټه ده. ښه فکر وکړئ.

**فائده**: کله چي د فعل فاعل ظاهر وي. مؤنث حقیقي وي. د فعل او فاعل په منځ کي فاصله هم نه وي. یا فاعل د مؤنث ضمیر وي نو په دواړو صورتو کي دفعل مؤنث راوړل ضروري دي لکه: قَامَتْ هِنْدٌ و هِنْدٌ قَامَتْ.

ترکیب: د هِنْدٌ قَامَتْ ترکیب داسي کیږي: هند مبتداء. قامت فعل. په هغه کي ضمیر هي پټ، هغه د اسم فاعل. فعل د خپل فاعل سره جمله فعلیه خبریه خبر سو، مبتدا او خبر جمله اسمیه خبریه سوه.

او کله چي فاعل ظاهر مؤنث حقیقي وي او د فعل او فاعل په منځ کي فاصله وي یا فاعل ظاهر مؤنث غیر حقیقي وي. یا فاعل ظاهر جمع مکسر وي نو په دغه درو صورتو کي فعل هم مؤنث راتلای سي او هم مذکر لکه قَرَأَ الْيَوْمُ هِنْدٌ. او قَرَأَتِ الْيَوْمَ هِنْدٌ. طَلَعَ الشَّمْسُ وَ طَلَعَتِ الشَّمْسُ. قَالَ الرِّجَالُ وَ قَالَتِ الرِّجَالُ.

**فائده**: کله چي د فعل فاعل ظاهر وي نو فعل همېشه د واحد صیغه راوړل کیږي لکه ضَرَبَ الرَّجُلُ، ضَرَبَ الرَّجُلَانِ. ضَرَبَ الرِّجَالُ.

او کله چي فاعل ظاهر نه وي نو فاعل د واحد لپاره فعل وحد او د تثنیه فاعل لپاره فعل تثنیه او جمع فاعل لپاره فعل هم جمع راوړل کیږي لکه: اَلْخَادِمُ ذَهَبَ. اَلْخَادِمَانِ ذَهَبَا. اَلْخَادِمُوْنَ ذَهَبُوْا.

مګر کله چي فاعل د جمع مکسر ضمیر وي نو فعل واحد مؤنث یا جمع

مذکر دواړه راتلای سي لکه: اَلرِّجَالُ قَامُوْا۔ اَلرِّجَالُ قَامَتْ.

۲: **مفعول مالم یسم فاعله**: هغه مفعول دی چي هغه ته د فعل مجهول نسبت وي او فاعل حذف کړل سي او دهغه پر ځای مفعول ذکر کړي لکه: ضَرَبَ زَيْدٌ ،د فعل د مذکر، مؤنث ، واحد، تثنیه او جمع په راوړلو کي د فاعل په ډول دی. لکه: ضُرِبَتْ هِنْدٌ وَهِنْدٌ ضُرِبَتْ، او ضُرِبَ الْيَوْمَ هِنْدٌ وَضُرِبَتِ الْيَوْمَ هِنْدٌ ،او رُاِیَ الشَّمْسُ وَرُاِيَتِ الشَّمْسُ ، او ضُرِبَ الرِّجَالُ وَضُرِبَتِ الرِّجَالُ، او ضُرِبَ الرَّجُلُ ضُرِبَ الرَّجُلَانِ ضُرِبَ الرِّجَالُ، او اَلْخَادِمُ طُلِبَ۔ اَلْخَادِمَانِ طُلِبَا. اَلْخَادِمُوْنَ طُلِبُوْا.

اَلرِّجَالُ ضُرِبُوْا۔ اَلرِّجَالُ ضُرِبَتْ.

فعل مجهول ته مالم یسم فاعله وایي. یعني داسي فعل چي د فاعل نوم یې معلوم نه وي .

۴،۳ : **مبتدا او خبر** : دغه دواړه د اسم عامل لفظي څخه خالي وي. مبتداء ته مسند الیه او خبر ته مسند وایي، په دوئ کي عامل معنوي وي لکه زَيْدٌ عَالِمٌ .

مبتداء زیات وختونه معرفه وي او کله نکره هم وي په شرط ددې چي په هغه کي يو څه تخصيص وسي چي د نورو کتابو څخه به معلومه سي.

خبر زیات وختونه نکره وي ، مثالونه یې دادي: زَيْدٌ اَبُوْهُ عَالِمٌ. اَللّٰهُ يَعْصِمُكَ. اَلْعَالِمُ اِنْ جَاءَكُمْ فَاَكْرِمُوْهُ. اَللّٰهُ مَعَكُمْ.

کله خبر پر مبتداء مخکي وي لکه : فِي الدَّارِ زَيْدٌ.

۵: د اِنَّ او داسي نورو خبر:

اِنَّ. اَنَّ. كَاَنَّ. لَيْتَ. لٰكِنَّ. لَعَلَّ

اسم ته نصب ورکوي او خبر ته رفع. لکه: اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ. وَكَاَنَّ عَمْرًا اَسَدٌ

۶: د مَا وَلَا اسم:

د مَا ولَا عمل د اِنّ او اَنّ خلاف دی. اسم ته رفع ورکوي او خبر ته نصب. لکه: مَازَيْدٌ قَائِمًا. لَارَجُلٌ اَفْضَلَ مِنْكَ.

۷: د كَانَ او نورو اسم:

كَانَ. صَارَ. اَصْبَحَ. اَمْسَى وَاَضْحَى ظَلَّ بَاتَ مَابَرِحَ مَادَامَ مَاانْفَكَّ لَيْسَ، مَافَتِئَ

اسم ته رفع او خبر ته نصب ورکوي لکه: كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا، صَارَ الْفَقِيْرُ غَنِيًّا.

۸: د لام نفي جنس خبر، لکه: لَارَجُلٌ قَائِمٌ.

## فصل: منصوبات

منصوبات دوولس دي، ۱: مفعول به، ۲: مفعول مطلق. ۳: مفعول له. ۴: مفعول معه، ۵: مفعول فيه، ۶: حال، ۷: تميز. ۸: د ان او نورو اسم. ۹: د ما و لا خبر، ۱۰: د لاء نفي جنس اسم، ۱۱: د كان خبر. ۱۲: مستثنی.

۱: **مفعول به**: هغه اسم دی چي پر هغه باندي د فاعل فعل واقع وي لکه: اَكَلَ زَيْدٌ طَعَامًا. شَرِبَ خَالِدٌ مَاءً.

ترکيب يې دادی: اکل فعل، زيد فاعل، طعاما مفعول به، فعل د خپل فاعل او مفعول به سره جمله فعليه خبريه سوه.

**فائده**: په ځينو ځايو کي د مفعول به فعل د يوې قرينې په وجه حذف کيږي لکه کوربه چي د خپل مېلمه د ښه راغلاست او د ادب ورکولو لپاره وايي: اَهْلًاوَ سَهْلًا ، يعني اَتَيْتَ اَهْلًا وَطَيْتَ سَهْلًا .ته خپلو خلګو ته راغلې او ته ښه ځای ته راغلې پر تا باندي هيڅ تکليف نسته. دلته د اتيت او وطيت لفظ حذف دی. او څرنګه چي د ډېرولو په وخت کي ويل کيږي: اِيَّاکَ وَالْاَسَدَ. يعني اتَّقِ نَفْسَکَ مِنَ الْاَسَدِ ، خپل ځان د زمري څخه وژغوره، دلته د اتق فعل محذوف دی. يو چا ته د ږغ کولو پر وخت هم فعل حذف کيږي لکه يَاغُلَامَ زَيْدٍ. يعني اَدْعُوْغُلَامَ زَيْدٍ .زه د زيد غلام ته ږغ کوم. دلته د ادعو لفظ محذوف دی . يا حرف نداء دی او غلام زيد منادی دی.

ياملرنه! که چيري منادی مضاف وي نو منصوب وي لکه يَاغُلَامَ زَيْدٍ . يا د مضاف مشابه وي لکه: يَاقَارِئًاکِتَابًا. اې د کتاب ويونکې.يا نکره غير معينه وي لکه يَارَجُلًا خُذْبِيَدِی .

مفرد معرفه منادی د رفع پر حالت مبني وي لکه يَا زَيْدُ. او که منادی معرفه په الف لام وي نو د حرف نداء او منادی په منځ کي د ايها څخه فصل کول لازمي دي لکه يَااَيُّهَا الرَّجُلُ.

په منادی کي ترخيم هم جائز دی يعني د تخفيف لپاره آخري حرف حذف کوي لکه په يَامَالِکُ کي يَامَالُ او په يَامَنْصُوْرُ کي يَامَنْصُ.

په منادی مرخم کي اصلي حرکت هم جائز دی او ضمه هم. ځکه يَامَالِ

هم ویلای سو او یا یَـامَالُ هم.

۲: **مفعول مطلق**: هغه مصدر دی چي د فعل وروسته واقع وي او هغه مصدر د دغه فعل وي لکه ضربًا په ضَرَبْتُ ضَرْبًا کي. او قِیَامًا په قُمْتُ قِیَامًا کي، د مفعول مطلق فعل د یوې قرینې په وجه حذف کیږي هم لکه راتلونکي ته چي ویل کیږي: خَیْرَمَقْدَمٍ یعني قَدِمْتَ قُدُوْمًا خَیْرَ مَقْدَمٍ، ته ښه راغلې.

۳: **مفعول له**: هغه اسم دی چي د هغه په سبب فعل واقع وي لکه قُمْتُ اِکْرَامًا لِزَیْدٍ وَضَرَبْتُهُ تَأْدِیْبًا.

ترکیب: ضربتُ فعل د فاعل سره. ه ضمیر مفعول به. تادیبا مفعول له. فعل د فاعل او دواړو مفعولو سره جمله فعلیه خبریه سوه.

۴: **مفعول معه**: هغه اسم دی چي د واو وروسته واقع وي او هغه واو د مع په معنی وي لکه جَاءَ زَیْدٌ وَالْکِتَابَ. راغلی زید مع (سره د) کتاب. جِئْتُ وَزَیْدًا، زه د زید سره راغلم.

ترکیب: جاء فعل، زید فاعل، واو په معنی د مع الکتاب معفول معه. فعل د خپل فاعل او مفعول معه سره جمله فعلیه سوه.

۵: **مفعول فیه**: هغه اسم دی چي په هغه کي فعل مذکوره واقع وي او دې ته ظرف وایي. ظرف پر دوه ډوله دی.۱: ظرف زمان. ۲: ظرف مکان.

بیا د ظرف زمان دوه ډولونه دي، ۱: مبهم، ۲: محدود.

ظرف مبهم: هغه ی چي حد يې معين نه وي لکه دَهْرٌ. حِيْنٌ.

ظرف محدود: هغه دی چي حد يې معين وي لکه يَوْمٌ. لَيْلٌ. شَهْرٌ. سَنَةٌ.

د ظرف مکان هم دوه ډولونه دي. ۱: مبهم. لکه: جَلَسْتُ خَلْفَكَ وَ قُمْتُ اَمَامَكَ. د خلف او امام هيڅ حد معين نه دی، د مځکي تر آخري برخي پوري مراد کېدای سي. ۲: محدود. لکه جَلَسْتُ فِي الدَّارِ وَصَلَّيْتُ فِي الْمَسْجِدِ.

**فائده**: په ظرف مکاني مبهم کي في مقدر وي او په ظرف مکاني محدود کي في ذکر سوې وي. يو شاعر دغه پنځه مفعوله په خپل شعر کي په نبه ډول بيان کړي دي:

حَمِدْتُ حَمْدًا حَامِدًا وَحَمِيْدًا　　　رِعَايَةَ شُكْرِهِ دَهْرًا مَدِيْدًا

ژباړه: ما د حامد تعريف د حميد سره وکړ، د هغه د شکر په لحاظ ساتلو سره تر يوې اوږدې زمانې پوري.

ترکيب: حمدت فعل د فاعل سره. حمدا مفعول مطلق. حامدا مفعول به. واو په معنی د مع. حميدا مفعول مع. رعاية مضاف. شکر مضاف اليه. مضاف ه مضاف اليه. مضاف او مضاف اليه د رعاية مضاف اليه سوه. مضاف او مضاف اليه مفعول له. دهرا موصوف. مديدا صفت. موصوف او صفت مفعول فيه. فعل د فاعل او خپلو ټولو مفعولو سره جمله فعليه سوه.

۶. **حال**: هغه اسم دی چي د فاعل صورت بيان کړي. يعني دا ثرګند کړي چي کله د فاعل څخه دغه فعل صادر سوی دی نو هغه په کوم

شکل کې وو، ولاړ وو، ناست وو، سپور وو او که پر پښو وو. لکه: جَاءَ زَيْدٌ رَاكِبًا ، راغلی زيد په داسي حال کي چي سپور وو. په دغه کلمه کي راکبا حال دی د زيد. يا د مفعول حالت او صورت ښکاره کړي لکه: جِئْتُ زَيْدًا نَائِمًا. زه راغلم زيد ته په داسي حال کي چي هغه بيده وو، يا د فاعل او مفعول دواړو حالت ښکاره کړي لکه: كَلَّمْتُ زَيْدًا جَالِسَيْنِ ، ما د زيد سره خبري وکړې په داسي حال کي چي دواړه ناست وو.

فاعل او مفعول ته ذوالحال وايي او هغه زيات وختونه معرفه وي. او که ذوالحال نکره وي نو حال مقدم کيږي لکه: جَاءَنِي رَاكِبًا رَجُلٌ . او حال جمله هم وي لکه. جَاءَنِي زَيْدٌ وَهُوَ رَاكِبٌ. او لَقِيتُ بَكْرًا وَهُوَ جَالِسٌ . او کله ذوالحال معنوي وي لکه: زَيْدٌ اَكَلَ جَالِسٌ . په دغه جمله کي هو ذوالحال دی چي په اکل کي پټ دي.

۱: ترکيب: جَاءَنِي زَيْدٌ رَاكِبًا . جاء فعل. زيد ذوالحال. راکب حال. حال او ذوالحال دواړه دجاء فاعل سوه. فعل د خپل فاعل سره جمله فعليه خبريه سوه.

۲: جِئْتُ عَمْرًوا نَائِمًا . جئت فعل بافاعل عمروا ذوالحال. نائما حال. حال او ذوالحال دواړه مفعول به. فعل د خپل فاعل او مفعول به سره جمله فعليه خبريه سوه.

۳: لَقِيتُ بَكْرًا وَهُوَ جَالِسٌ . لقيت فعل بافاعل بکرا ذوالحال. واو

حاليه. هو مبتدا، جالس خبر، مبتدا او خبر جمله اسميه خبريه حال سو. حال او ذوالحال د لقيت مفعول به. فعل بافاعل او مفعول به جمله فعليه خبريه سوه.

۴: زَيْدٌ اَكَلَ جَالِسًا. زيد مبتدا. اكل فعل. په هغه كي ضمير هو ذوالحال. جالسا حال. حال او ذوالحال فاعل سوه د اكل. فعل دخپل فاعل سره جمله فعليه خبريه د مبتداء خبر سو. پاته تركيب څرګند دی.

۷: **تميز**: هغه اسم دی چي د حدودو پټ والی ختم كړي لكه: رَاَيْتُ اَحَدَعَشَرَ كَوْكَبًا. يا د وزن لكه: اِشْتَرَيْتُ رِطْلًا زَيْتًا. ما يو رطل د زيتون تيل رانيول. يا د پيمانې لكه: بِعْتُ قَفِيْزَيْنِ بُرًّا. ما دوه قفيزه غنم خرڅ كړه.

۱: تركيب. رايت فعل. احد عشر مميز. كوكبا تميز. مميز او تميز مفعول به سو. پاته تركيب څرګند دی.

۲: اشتريت فعل بافاعل رطلا مميز. زيتا تميز، مميز او تميز مفعول به سو.

۳: بعت فعل بافاعل. قفيزين مميز. برا تميز. مميز او تميز مفعول به سو.

۸: **د اِنَّ او نورو اسم**. لكه: اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ.

۹: **د ما ولا خبر**. لكه: لَارَجُلُ ظَرِيْفًا.

۱۰: **د لام نفي جنس اسم**. لكه: لَارَجُلَ ظَرِيْفٌ.

۱۱: **د كَانَ او نورو خبر**. لكه: كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا .

۱۲: **مستثنى**: هغه اسم دى چي چي د حروف استثناء وروسته واقع وي او د هغه څخه دا څرګنده وي چي د كوم شي نسبت مخكي شي ته كيږي د هغه څخه مستثنى وتلى دى .

حروف استثناء اتہ دي: (۱): اِلَّا (۲): غَيْرَ (۳): سِوَى (۴): حَاشَا (۵): خَلَا (٦): عَدَا (۷): مَاخَلَا (۸): مَاعَدَا .

د دغه حروفو څخه مخكي چي كوم حرف راسي هغه ته مستثنى منه وايي لكه: جَاءَنِي الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا . ما ته قوم راغلى مګر نه زيد .

په دغه مثال كي د راتګ نسبت قوم ته كيږي مګر د الا لفظ زيد ددغه نسبت څخه وايستى، نو قوم مستثنى منه سو او زيد مستثنى .

د مستثنى دوه ډولونه دي. ۱: متصل. ۲: منفصل.

مستثنى متصل هغه دى چي د استثناء څخه مخكي په مستثنى منه كي داخل وي او بيا د حرف استثناء په راوړلو سره وايستل سي لكه: جَاءَ الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا ،نو په دغه جمله كي زيد د استثناء څخه مخكي په قوم كي داخل وو مګر د راتګ د حكم څخه د حرف استثناء په ذريعه وايستل سو .

مستثنى منقطع هغه دى چي نه د استثناء څخه مخكي په مستثنى منه كي داخل وي او نه وروسته تر استثناء. لكه: سَجَدَ الْمَلٰئِكَةُ اِلَّا اِبْلِيسَ . ملائكو سجده وكړه مګر نه شيطان، نو ابليس نه د استثناء څخه مخكي په ملائكو كي داخل وو او نه وروسته (بلكه پيرى وو) .

دا مستثنی منقطع سوه .

ترکیب: جَاءَالْقَوْمُ اِلَّا زَیْدًا . جاء فعل. القوم مستثنی منه. الا حرف استثناء. زیدا مستثنی. مستثنی منه او مستثنی فاعل سوه، جاء فعل د خپل فاعل سره جمله فعلیه خبریه سوه .

بیا په یو بل اعتبار د مستثنی دوه ډولونه دي. ۱: مفرغ. ۲: غیر مفرغ.

مفرغ :هغه دی چي مستثنی منه یې مذکور نه وي لکه: جَاءَنِي اِلَّا زَیْدٌ .

غیر مفرغ: هغه ده چي په هغه کي مستثنی منه مذکور وي لکه: جَاءَنِي الْقَوْمُ اِلَّازَیْدًا .

په کوم کلام کي چي استثناء وي د هغه هم دوه ډولونه دي. ۱: موجب. ۲: غیر موجب.

موجب: هغه ده چي په هغه کي نفي، نهي او استفهام نه وي .

غیر موجب: هغه ده چي په هغه کي نفي، نهي او استفهام موجود وي .

## د مستثنی د اعراب ډولونه

| شمېره | قاعده | مثال |
|---|---|---|
| ۱ | که متصل مستثنی د الا وروسته په کلام موجب کي واقع وي نو مستثنی همیشه منصوب وي . | جَاءَنِي الْقَوْمُ اِلَّازَیْدًا |
| ۲ | که په کلام غیر موجب کي مستثنی پر مستثنی منه مقدم کړي نو منصوب ... کېږي . | مَاجَاءَنِي اِلَّازَیْدًا اَحَدٌ |

| | | |
|---|---|---|
| ۳ | مستثنی منقطع همیشه منصوب وي. | سَجَدَ الْمَلٰئِکَةُ اِلَّا اِبْلِیْسَ |
| ۴ | د خلا او عدا وروسته مستثنی د اکثرو عالمانو په نزد منصوب وي. | جَاءَنِي الْقَوْمُ خَلَا زَیْدًا |
| ۵ | د ماعدا وروسته مستثنی همیشه منصوب وي. | جَاءَنِي الْقَوْمُ مَاعَدَا زَیْدًا |
| ۶ الف | کومه مستثنی چي د الا وروسته په غیرموجب کلام کي واقع وي او د هغه مستثنی منه هم مذکور وي نو په هغه کي دوه صورتونه جائز دي. یو دا چي په د استثناء په توګه منصوب وي | مَاجَاءَنِي اَحَدٌ اِلَّا زَیْدًا |
| ۶ ب | دوهم دا چي د خپل ماقبل بدل وي یعني کوم اعراب چي د الا د مخکي اسم وي هغه د الا د وروسته هم وي. | مَاجَاءَنِي اَحَدٌ اِلَّا زَیْدٌ |
| ۷ | که مستثنی مفرغ وي او په کلام غیر موجب کي واقع وي نو د الا د مستثنی اعراب د عامل مطابق وي. | مَاجَاءَنِي اِلَّا زَیْدٌ<br>مَارَاَیْتُ اِلَّا زَیْدًا<br>مَامَرَرْتُ اِلَّا بِزَیْدٍ |
| ۸ | که مستثنی د غُیر، سوی، سواء، حاشا وروسته واقع وي نو مستثنی مجرور ويل کیږي. | جَاءَنِي الْقَوْمُ غَیْرَ زَیْدٍ<br>وَسِوَی زَیْدٍ. وَسِوَاءَ زَیْدٍ<br>وَحَاشَا زَیْدٍ. |

## د (غیر) لفظ اعراب

دا خو معلومه سوه چي د غیر وروسته مستثنی مجرور وي. اوس دا بنودل کیږي چي د غیر لفظ اعراب په ټولو ذکر سوو صورتو کي

داسي وي لکه د ذکر سوي مستثنی . لکه چي د لاندي نقشې څخه به معلوم سي :

| مثال | د قاعدې وضاحت |
|---|---|
| جَاءَنِي الْقَوْمُ غَيْرَزَيْدٍ. | دا د مستثنی متصل مثال دی. |
| سَجَدَ الْمَلٰئِكَةُ غَيْرَ اِبْلِيْسٍ. | دا د مستثنی منقطع مثال دی. |
| مَاجَاءَنِي غَيْرَزَيْدٍ الْقَوْمُ. | غيرموجب . کلام دی. مستثنی مقدم دی. |
| مَاجَاءَنِي اَحَدٌ غَيْرَزَيْدٍ وَغَيْرَزَيْدٍ. | په دغه کي دوه صورتونه دي. استثناء او بدل. |
| مَاجَاءَنِي غَيْرُ زَيْدٍ. | په دغه درو مثالو کي د غير اعراب د عامل مطابق دی. |
| مَارَاَيْتُ غَيْرَزَيْدٍ. | |
| مَامَرَرْتُ بِغَيْرِزَيْدٍ. | |

**فائده:** د غير لفظ اصل وضع د صفت لپاره ده مگر کله د استثناء لپاره هم راځي. همدارنگه الا د استثناء لپاره دی او کله د صفت لپاره هم راځي لکه د الله ﷻ فرمان: لَوْكَانَ فِيْهِمَا اٰلِهَةٌ اِلَّا اللهُ لَفَسَدَتَا. او همدارنگه: لَااِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَیْ غَيْرَاللهِ.

## فصل: مجرورات

کوم اسم چي مجرور (زېر لرونکی) وي هغه دوه دي. يو مضاف اليه لکه: غُلَامُ زَيْدٍ ، او دوهم هغه چي حرف جر ورباندي داخل وي لکه:

بِزَيْدٍ.

**١ - فائده:** پر مضاف الف لام او تنوین نه راځي او د تثنیه او جمع نون په اضافت کي ایسته کیږي لکه: غُلَامَا زَيْدٍ. فَرَسَا عَمْرٍو. مُسْلِمُو مِصْرَ. طَالِبُو عِلْمٍ.

() - **فائده:** د مضاف الیه په معنی کي د: د. زما. زموږ. خپل او خپله الفاظ راځي لکه: غُلَامُ زَيْدٍ. د زید غلام. غُلَامِي حَاضِرٌ. زما غلام حاضر دی. ضَرَبْتُ غُلَامِي. ما خپل غلام وواهه.

## فصل

### د اسماء متمکن د اعراب ډولونه

| مثال | د رفع. نصب او جر حالت | د اسماء متمکن اقسام | د اسماء متمکن شمېر | د اعراب د اقسامو شمېر |
|---|---|---|---|---|
| جَاءَنِي زَيْدٌ<br>هٰذَا دَلْوٌ<br>هُمْ رِجَالٌ. | د رفع په حالت کي ضمه. | اسم مفرد منصرف صحیح لکه: زَيْدٌ | ١ | ١ |
| رَأَيْتُ زَيْدًا<br>رَأَيْتُ دَلْوًا.<br>رَأَيْتُ رِجَالًا<br>مَرَرْتُ بِزَيْدٍ<br>جِئْتُ بِدَلْوٍ | د نصب په حالت کي فتحه. د جر په حالت کي کسره. | اسم مفرد قائم مقام صحیح لکه: دَلْوٌ.<br>جمع مکسر منصرف لکه: | ٢<br>٣ | ١ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | رِجَالٌ | | قُلْتُ لِرِجَالٍ. |
| ٢ | ٤ | جمع مؤنث<br>سالم لكه:<br>مُسْلِمَاتٌ | د رفع په حالت<br>كي ضمه، د<br>نصب او جر په<br>حالت كي كسره | هُنَّ مُسْلِمَاتٌ<br>رَاَيْتُ مُسْلِمَاتٍ<br>مَرَرْتُ بِمُسْلِمَاتٍ |
| ٣ | ٥ | غير منصرف | د رفع په حالت<br>كي ضمه، د<br>نصب او جر په<br>حالت كي فتحه | جَاءَ عُمَرُ<br>رَاَيْتُ عُمَرَ<br>مَرَرْتُ بِعُمَرَ |
| ٤ | ٦ | اسماء سته<br>مكبره چي د ياء<br>متكلم څخه<br>ماسوا بل اسم<br>ته مضاف وي | د رفع په حالت<br>كي واو، د<br>نصب په حالت<br>كي الف او د جر<br>په حالت كي ياء | جَاءَ اَبُوْكَ<br>رَاَيْتُ اَبَاكَ<br>مَرَرْتُ بِاَبِيْكَ |
| **فائده:** اسماء سته مكبره. يعني هغه شپږ اسمونه چي د تصغير په حالت كي نه وي. دادي: اب. اخ. حم. هن. فم. ذومال. كه چيري ياء متكلم ته مضاف وي نو په درو سره حالتو كي اعراب يو ډول وي لكه: جاء ابي. رايت ابي. مررت بابي. | | | | |
| ٥ | ٧ | مثنى لكه<br>رَجُلَانِ<br>كِلَا<br>وَكِلْتَا<br>. چي ضمير ته<br>مضاف وي. | | جَاءَ رَجُلَانِ<br>جَاءَ كِلَاهُمَا<br>جَاءَ اِثْنَانِ<br>رَاَيْتُ رَجُلَيْنِ<br>رَاَيْتُ كِلَيْهِمَا<br>رَاَيْتُ اِثْنَيْنِ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | ۹ | اِثْنَانِ. اِثْنَتَانِ | | مَرَرْتُ بِرَجُلَيْنِ<br>مَرَرْتُ بِكِلَيْهِمَا<br>مَرَرْتُ بِاثْنَيْنِ |
| ۶ | ۱۰<br>۱۱<br>۱۲ | جمع مذکر سالم لکه:<br>مُسْلِمُوْنَ<br>اُولُو<br>د عِشْرُوْنَ څخه تر تِسْعُوْنَ | د رفع په حالت کي واو ماقبل مضموم.<br>د نصب او جر په حالت کي یاء، ماقبل مکسور. | جَاءَ مُسْلِمُوْنَ<br>جَاءَ اُولُو مَالٍ<br>جَاءَ عِشْرُوْنَ رَجُلًا<br>رَأَيْتُ مُسْلِمِيْنَ<br>رَأَيْتُ اُولِي مَالٍ<br>رَأَيْتُ عِشْرِيْنَ رَجُلًا<br>مَرَرْتُ بِمُسْلِمِيْنَ<br>مَرَرْتُ بِاُولِي مَالٍ<br>مَرَرْتُ بِعِشْرِيْنَ رَجُلًا |
| ۷ | ۱۳<br>۱۴ | اسم مقصور لکه: مُوْسٰی.<br>د جمع مذکر سالم څخه ماسوا بل اسم چي یاء متکلم ته مضاف وي | په درو سره حالتو کي اعراب تقديري وي. | جَاءَ مُوْسٰی<br>جَاءَ غُلَامِي<br>رَأَيْتُ مُوْسٰی<br>رَأَيْتُ غُلَامِي<br>مَرَرْتُ بِمُوْسٰی<br>مَرَرْتُ بِغُلَامِي |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۸ | ۱۵ | اسم منقوص چي په آخر کي يې ياء ماقبل مکسور وي | د رفع په حالت کي واو، تقديري حالت | جَاءَ الْقَاضِي<br>رَاَيْتُ الْقَاضِيَ<br>مَرَرْتُ بِالْقَاضِيْ |
| ۹ | ۱۶ | جمع مذکر سالم ياء متکلم ته مضاف. | د رفع په حالت کي واو، تقديري حالت، په نصب او جر کي ياء ماقبل مکسور. | هٰؤُلَاءِ مُسْلِمِيَّ<br>رَاَيْتُ مُسْلِمِيَّ<br>مَرَرْتُ بِمُسْلِمِيَّ |

**فائده**: مُسْلِمِيَّ په اصل کي مُسْلِمُوْنَ وه. کله چي ياء متکلم ته مضاف سو نو د جمع نون د اضافت په وجه ايسته سو او مُسْلِمُوْيَ پاته سو. اوس واو او ي. جمع سوه. واو ساکن وو ځکه د مرمي په قاعده واو په ياء بدل سو او ياء په ياء کي مدغم سوه نو مُسْلِمُيَّ سو. بيا يې د ميم ضمه د ياء د مناسبت په وجه په کسره بدله کړه نو مُسْلِمِيَّ سو.

**فائده**: د مُسْلِمِيَّ د نصب او جر حالت په اصل کي مُسْلِمِيْنَ دی. ځکه د جمع مذکر سالم د نصب او جر په حالت کي ياء ماقبل مکسور وي ځکه دلته د اضافت د نون ايسته کولو وروسته په ياء بدلولو ضرورت نه سته. ځکه د نصب او جر د حالت په وجه تر مخکي ياء موجود ده ځکه نو يوازي ياء په ياء کي مدغم کوو. بنه فکر وکړه.

# فصل: توابع

ځرګنده دي وي چي کله په جمله کي دوه اسمونه یو ځای جمع سي او د دوهم اسم اعراب د یوې وجهي د اول موافق وي نو اول اسم ته متبوع او دوهم ته تابع وايي.

نو تابع هغه دوهم اسم دی چي د خپل اول اسم د یوې جهي څخه په اعراب کي موافق وي، د تابع پنځه قسمونه دي، ۱: صفت. ۲: تاکید. ۳: بدل، ۴: عطف بحرف، ۵: عطف بیان.

صفت هغه تابع دی چي د متبوع ښه یا بد حالت ظاهر کړي لکه جَاءَنِي رَجُلٌ عَالِمٌ، په دغه مثال کي عالم د رجل علمي حالت ځرګند کړی دی اوړیا د متبوع اړوند حالت ظاهر کړي لکه: جَاءَنِي رَجُلٌ عَالِمٌ اَبُوْهُ. په دغه جمله کي عالم د ابوه علمي حالت ظاهر کړی دی چي د رجل متبوع متعلق دی.

نو د صفت دوه ډولونه سوه، یو هغه چي د خپل متبوع حالت ظاهر کړي دوهم هغه چي د متبوع اړوند حالت ظاهر کړي.

د صفت اول ډول په لسو شیانو کي د متبوع موافق وي، ۱: تعریف، ۲: تنکیر، ۳: تذکیر، ۴: تانیث، ۵: افراد، ۶: تثنیه، ۷: جمع، ۸: رفع. ۹: نصب، ۱۰: جر. لکه: عِنْدِیْ رَجُلٌ عَالِمٌ. رَجُلَانِ عَالِمَانِ. رِجَالٌ عَالِمُوْنَ. اِمْرَاَةٌ عَالِمَةٌ. اِمْرَاءَتَانِ عَالِمَتَانِ. نِسْوَةٌ عَالِمَاتٌ.

دوهم ډول په پنځو شیانو کي د متبوع موافق وي. ۱: تعریف. ۲: تنکیر، ۳: رفع. ۴: نصب. ۵: جر. لکه: جَاءَتْنِی اِمْرَاءَةٌ عَالِمٌ اِبْنُهَا، په

دغه مثال کي د عالم او امراة اعراب يو دی مګر څرنګه چي د عالم
څخه د ابنها حالت ظاهريږي ځکه عالم مذکر راوړل سو .

**فائده:** د نکره صفت په جمله خبريه هم کيدای سي او په هغه جمله کي د
ضمير راوړل ضروري وي چي نکره ته راګرځي، لکه جَاءَنِی رَجُلٌ اَبُوْهُ
عَالِمٌ. ۰

۱- ترکيب: جَاءَنِی رَجُلٌ عَالِمٌ . جاء فعل، نون د وقايې، د متکلم ياء
مفعول به، رجل موصوف، عالم صفت، موصوف او صفت فاعل سوه .
فعل د خپل فاعل او مفعول به سره جمله فعليه خبريه سوه .

۲- ترکيب: جَاءَتْنِی اِمْرَاَةٌ عَالِمٌ اِبْنُهَا. جاءت فعل. نون د وقايې، د
متکلم ياء مفعول به. امراة موصوف. عالم اسم فاعل. ابن مضاف، ها
مضاف اليه، مضاف او مضاف اليه فاعل د عالم. عالم د خپل فاعل
سره صفت سو. موصوف او صفت فاعل سوه د جاءت. جاءت د خپل
فعل ، فاعل او مفعول به سره جمله فعليه خبريه سوه .

۳: ترکيب: جَاءَنِی رَجُلٌ اَبُوْهُ عَالِمٌ . جاء فعل. نون د وقايې، د متکلم
ياء مفعول، رجل موصوف، ابو مضاف، ه مضاف اليه، مضاف او
مضاف اليه مبتداء، عالم خبر. مبتدا او خبر جمله اسميه خبريه صفت
سو ، موصوف او صفت فاعل سو د جاء. فعل د خپل فاعل او مفعول
سره جمله فعليه خبريه سوه .

## ترکيب يې وکړئ :

رَاَيْتُ اِمْرَاَةً عَالِمَةً. مَرَرْتُ بِرَجُلٍ عَالِمَةٍ بِنْتُهُ. جَاءَنِی رَجُلٌ مَاتَ اَبُوْهُ.

اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا. اُسْكُنْ فِيْ تِلْكَ الدَّارِ الْمَفْتُوْحِ بَابُهَا

۲: تاکید: هغه تابع دی چي د متبوع نسبت شاملېدل ښه ثابت کړي چي اورېدونکی ته هيڅ شک پاته نه سي. لکه جَاءَ زَيْدٌ زَيْدٌ. په دغه جمله کي دوهم زيد تاکيد کړی دی د اول زيد په نسبت چي جاء ته کيږي، ښه يې ثابته کړه چي د زيد په راتګ کي هيڅ شک نسته. او لکه: جَاءَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ. په دغه جمله کي کلهم تاکيد دی. د قوم شاملېدل يې ښه ثابت کړه چي ټول قوم راغلی هيڅ يو پاته نه سو.

د تاکيد دوه ډولونه دي. ۱: لفظي. ۲: معنوي.

تاکيد لفظي هغه دی چي په هغه کي لفظ تکرار راوړل سي لکه جاء زَيْدٌ زَيْدٌ

تاکيد معنوي په اتو لفظو سره کيږي: نَفْسٌ. عَيْنٌ. كِلَا. كِلْتَا. كُلٌّ. اَجْمَعَ. اَكْتَعَ. اَبْصَعَ.

نَفْسٌ. عَيْنٌ: دغه دوه الفاظ د وحد. تثنيه او جمع د تاکيد لپاره راځي په شرط د دې چي صيغې او ضميرونه بدل کړل سي لکه: اَجَاءَ زَيْدٌ نَفْسُهُ. جَاءَ زَيْدَانِ اَنْفُسُهُمَا. جَاءَ الزَّيْدُوْنَ اَنْفُسُهُمْ.

د عَيْنٌ. مثال هم داسي وګڼئ لکه. جَاءَ زَيْدٌ عَيْنُهُ الخ.

كِلَا د تثنيه مذکر او كِلْتَا. د تثنيه مؤنث د تاکيد لپاره راځي لکه: جَاءَ الرَّجُلَانِ كِلَاهُمَا، جَاءَتِ الْمِرْاَتَانِ كِلْتَاهُمَا،

كُلٌّ. اَجْمَعَ: دغه دواړه الفاظ د واحد او جمع د تاکيد لپاره راځي لکه:

قَرَاْتُ الْكِتَابَ كُلَّهُ. جَاءَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ. اِشْتَرَيْتُ الْفَرَسَ اَجْمَعَهُ. جَاءَ النَّاسُ اَجْمَعُوْنَ،

اَجْمَعَ. اَكْتَعَ. اَبْصَعَ. د اجمع تابع وي. يعني بېله اجمع نه راځي او نه پر اجمع مقدم کېږي لکه: جَاءَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ. اَكْتَعُوْنَ. اَبْتَعُوْنَ. اَبْصَعُوْنَ.

ترکيب: جاء فعل، القوم مؤکد. کل مضاف. هم مضاف اليه. مضاف او مضاف اليه تاکيد، اجمعون دوهم تاکيد، مؤکد د خپلو دواړو تاکيدو سره فاعل سو، پاته ترکيب څرګند دی.

## ترکيب يې وکړئ

سَجَدَ الْمَلٰئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ. رَاَيْتُ الْاَمِيْرَ نَفْسَهُ

٣: بدل: هغه تابع دی چي په نسبت سره خپله مقصود وي او متبوع مقصود نه وي، د بدل څلور ډولونه دي، ١: بدل الکل. ٢: بدل البعض، ٣: بدل الاشتمال، ۴: بدل الغلط.

بدل الکل: هغه بدل دی چي د هغه او مبدل منه يو مطلب وي لکه: جَاءَنِي زَيْدٌ اَخُوْكَ. قَرَاْتُ الْكِتَابَ رَوْضَةُ الْاَدَبِ.

بدل البعض: هغه بدل دی چي د خپل بدل منه يوه برخه وي، لکه: ضَرَبَ زَيْدٌ رَاْسُهُ.

بدل الاشتمال: هغه بدل دی چي د مبدل منه سره يې تړاو وي لکه: سُلِبَ زَيْدٌ ثَوْبُهُ. سُرِقَ عَمْرٌو مَالُهُ.

بدل الغلط: هغه بدل دی چي د غلطۍ کولو وروسته ذکر کړل سي لکه: اِشْتَرَيْتُ فَرَسًا، حِمَارًا. ما آس رانیوی، نه خر. جَاءَنِي زَيْدٌ جَعْفَرٌ. ما ته زید راغلی، نه جعفر.

۴: عطف په حرف: هغه تابع دی چي د حرف عطف وروسته راسي او کوم نسبت چي متبوع ته وي هغه تابع ته وي. متبوع ته معطوف علیه او تابع ته معطوف وايي، لکه: جَاءَزَيْدٌ وَ عَمْرٌو، نو څرنگه چي د جاء نسبت زید ته سوی دی همداسي د حرف عطف په واسطه عمرو ته دی.

۵: عطف بیان: هغه تابع دی چي صفت نه وي مگر د خپل متبوع په څرگنده ظاهر کړي، او هغه په دوو نومو کي یو مشهور نوم وي لکه: جَاءَ زَيْدٌ اَبُوْعَمْرٍو، یعني زید راغلی چي په ابوعمرو مشهور دی. نو دلته ابوعمرو عطف بیان دی او: جَاءَ اَبُوْظَفَرٍ عَبْدُاللهِ، یعني ابوظفر راغلی چي د عبدالله په نامه مشهور دی دلته عبدالله عطف بیان دی.

۱- ترکیب: جَاءَنِي زَيْدٌ اَخُوْكَ. جاء فعل. ن د وقایه. د متکلم یاء مفعول به، زید مبدل منه. اخو مضاف. ک مضاف الیه. مضاف او مضاف الیه بدل. بدل او مبدل منه فاعل سوه د جاء. پاته ترکیب یې ښکاره دی.

۲- ترکیب: ضُرِبَ زَيْدٌ رَاْسُهُ. ضُرِب فعل مجهول. زید مبدل منه. راس مضاف. ه مضاف الیه. مضاف او مضاف الیه بدل سوه. بدل او مبدل منه مفعول مالم یسم فاعله سوه. پاته ترکیب یې ښکاره دی.

۳- ترکیب: اِشْتَرَیْتُ فَرَسًا حمَارًا . اشتریت فعل او فاعل. فرسا مبدل منه. حمارا بدل، بدل او مبدل منه مفعول به. اشتریت فعل او فاعل د خپل مفعول به سره جمله فعلیه خبریه سوه .

۴- ترکیب: جَاءَ زَیْدٌ وَ عَمْرٌ . جاء فعل. زید معطوف علیه. واو حرف عطف. عمرو معطوف. معطوف او معطوف علیه فاعل سوه د جاء. جاء فعل د خپل فاعل سره جمله فعلیه خبریه سوه. پاته ترکیب ښکاره دی.

۵- ترکیب: جَاءَ زَیْدٌ اَبُوْعَمْرٍو . جاء فعل. زید متبوع. ابو مضاف. عمرو مضاف الیه. مضاف او مضاف الیه د عطف بیان تابع سوه. متبوع او تابع فاعل سوه د جا . پاته ترکیب یې ښکاره دی .

## ترکیب یې وکړئ:

| | |
|---|---|
| قَامَ عَمْرٌ وَ اَبُوْكَ . | قَطَعَ زَیْدٌ یَدُهُ. |
| سَرَقَ حَمِیْدٌ نِعَالُهُ. | بِعْتُ جَمَلًا فَرَسًا . |
| ذَهَبَ بَكْرٌ وَ خَالِدٌ. | جَاءَ اَبُوْالظَّفرِ عَبْدُاللهِ. |

## فصل:

## عوامل لفظي او معنوي

د اعراب عوامل پر دوه ډوله دي. ۱: لفظي. ۲: معنوي.

لفظي عامل هغه دی چي په ظاهر لفظو کي موجود وي لکه په عَلَی

اَلْاَرْضِ. کي علی د ارض لفظ مجرور کړی دی او په جَاءَ زَيْدٌ کي د جاء لفظ زيد مضموم کړی دی.

د لفظي عامل درې ډولونه دي . ۱: حروف، ۲: اسماء، ۳: افعال.

## فصل:

## حروف عامله په اسم کي

کوم حروف چي په اسم کي عمل کوي، پر اووه ډوله دي:

۱: **حروف جر:** چي اسم ته زېر ورکوي او هغه اووه لس دي:

باوَتاؤکاف و لام واؤ مُنذومُذ خَلا رُبَّ. حَاشَا. مِنْ. عَدَا. فِيْ. عَنْ. حَتّٰی. اِلٰی

**مثالونه:**

مَرَرْتُ بِزَيْدٍ. تَاللهِ لَاَفْعَلَنَّ كَذَا. زَيْدٌ كَالْاَسَدِ. اَلْحَمْدُلِلّٰهِ. وَاللهِ لَاَفْعَلَنَّ كَذَا. مَارَاَيْتُهُ مُنْذُيَوْمِ الْجُمُعَةِ. مَاجَاءَنِي زَيْدٌ مُذْخَمْسَةِ اَيَّامٍ. جَاءَنِي الْقَوْمُ خَلَا زَيْدٍ. رُبَّ عَالِمٍ تَعْمَلُ بِعِلْمِهِ. جَاءَنِي الْقَوْمُ حَاشَا زَيْدٍ. جَاءَنِي الْقَوْمُ عَدَا زَيْدٍ. زَيْدٌ فِي الدَّارِ. سَاَلْتُهُ عَنْ اَمْرٍ. قَامَ زَيْدٌ عَلَى السَّطْحِ. اَكَلْتُ السَّمَكَةَ حَتّٰى رَاْسُهَا. سِرْتُ مِنَ الْهِنْدِ اِلَى الْمَدِيْنَةِ

۲: **حروف مشبه بفعل:** چي اسم ته نصب او خبر ته رفع ورکوي، او دا شپږ دي: اِنَّ، اَنَّ، كَاَنَّ، لَيْتَ، لٰكِنَّ، لَعَلَّ.

**مثالونه:**

اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ. بَلَغَنِي اَنَّ زَيْدًا مُنْطَلِقٌ. كَاَنَّ زَيْدًا اَسَدٌ. غَابَ زَيْدٌ وَلٰكِنَّ

بَكْرًا حَاضِرٌ. لَيْتَ زَيْدًا قَائِمٌ، لَعَلَّ السُّلْطَانَ يُكْرِمُنِي

**۳: ما ولا:** چي په عمل کولو کي د ليس مشابه دي.

**مثالونه:**

مَازَيْدٌ قَائِمًا. لَا رَجُلٌ ظَرِيْفًا.

**۴: لام نفي جنس:** د دغه لام اسم اکثره مضاف منصوب وي او خبر مرفوع لکه: لَاغُلَامَ رَجُلٍ ظَرِيْفٌ فِي الدَّارِ.

او که وروسته د لام معرفه وي نو د دوهم معرفه وروسته د لا دوهم وار راوړل ضروري دي او لا به هيڅ عمل نه کوي. معرفه به د مبتداء په حيثيت مرفوع وي لکه:

لَازَيْدٌ عِنْدِی وَلَاعَمْرٌو لَاخَالِدٌ هَهُنَا وَ لَاسَعِيْدٌ.

په دې باندې داسي پوه سئ چي کله د دوو معرفوو يو ځای نه کېدل وښودل سي نو د هغه ترکيب سره ووايا ست چي لا دوهم وار د هر معرفه په سر کي راوړي او معرفه په رفع سره ووايي او که د دوو نکره نه کېدل ظاهر کړي نو دواړه پنځه ډوله ويلای سي:

(۱): لَارَجُلَ فِي الدَّارِ وَلَا اِمْرَأَةَ.

(۲): لَارَجُلَ فِي الدَّارِ وَلَا اِمْرَأَةٌ.

(۳): لَارَجُلَ فِي الدَّارِ وَلَا اِمْرَأَةً.

(۴): لَارَجُلٌ فِي الدَّارِ وَلَا اِمْرَأَةٌ.

(۵): لَارَجُلٌ فِي الدَّارِ وَلَا اِمْرَأَةَ.

۵: **حرف نداء:** چي منادى مضاف ته نصب ورکوي . او دا پنځه دي:

(۱): يَا (۲): اَيَا (۳): هَيَا (۴): اَیْ (۵): اَ

لکه: يَا عَبْدَاللهِ . اَی او همزه د نږدې لپاره. اَيَا او هَيَا د ليري لپاره او يَا عام استعماليږي.

۶: **واو په معنی د مَعَ:** لکه: اِسْتَوَی الْمَاءُ وَالْخَشَبَةُ.

۷: **اِلَّا حرف استثناء:** لکه جَاءَ الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا.

## فصل:

## حروف عامله په فعل مضارع کي

په فعل مضارع کي چي کوم حروف عمل کوي هغه پر دوه ډوله دي. ۱: ناصب، ۲: جازم.

حروف ناصبه دا دي:

اَنْ. لَنْ. کَیْ. اِذَنْ

**مثالونه:**

۱: اَنْ. لکه: اُرِيْدُ اَنْ تَقُوْمَ، اَنْ د فعل سره د مصدر په معنی وي يعني: اُرِيْدُ قِيَامَکَ. ځکه د غه ته اَن مصدريه هم وايي.

۲: لَنْ، لکه: لَنْ يَذْهَبَ عَمْرٌو. لَنْ، د نفي د تاکيد لپاره راځي.

۳: کَيْ لکه: اَسْلَمْتُ کَیْ اَدْخُلَ الْجَنّةَ.

۴: اِذَنْ لکه: اِذَنْ اَشْکُرَکَ، د هغه چا په جواب کي ويل کيږي چي

و وايي: اَنَا اُعْطِيْکَ دِيْنَارًا.

**فائده**: اَنْ د شپږو حروفو وروسته مقدر (پټ) وي او فعل مضارع ته نصب ورکوي:

۱: حَتّٰى، لکه: مَرَرْتُ حَتّٰى اَدْخُلَ الْبَلَدَ.

۲: لام جحد، لکه: مَاكَانَ اللهُ لِيُعَذِّبَهُمْ.

۳: اَوْ، چي د اِلٰى، اَنْ. يا. اِلَّا. اِنْ. په معنى وي لکه: لَاَلْزِمَنَّکَ اَوْ تُعْطِيْنِی حَقِّی اَیْ اِلٰى اَنْ تُعْطِيْنِی حَقِّی.

۴: واو صرف. دا هغه واو ته وايي چي كوم شى پر معطوف عليه داخل وي هغه د دغه واو پر مدخول داخل نه سي لكه په دغه شعر كي:

لَا تَنْهَ عَنْ خُلُقٍ وَتَأْتِيَ مِثْلَهُ عَارٌ عَلَيْکَ اِذْ فَعَلْتَ عَظِيْمٌ

په دغه شعر كي د واو مدخول تَأْتِيَ مِثْلَهُ دى. پر دغه باندي د لاتنه لام نه سي داخليداى. د شعر معنى داده چي كوم بد كار ته كوې د هغه څخه نور مه منعه كوه ځكه كه ته داسي كوې نو دا ډېره د شرم خبره ده.

۵: لَامَ كَى، لکه: اَسْلَمْتُ لِاَدْخُلَ الْجَنَّةَ.

۶: فاء چي د شپږو شيانو په جواب كي وي. ۱: امر. ۲: نهي. ۳: نفي. ۴: استفهام. ۵: تمنى. ۶: عرض.

۱: امر. لکه: زُرْنِی فَاُكْرِمَکَ.

۲: نهي. لکه: لَا تَشْتِمْنِی فَاُهِيْنَکَ.

۳: نفي. لکه: مَاتَأْتِيْنَا فَتُحَدِّثُنَا.

۴: استفهام. لکه: أَيْنَ بَيْتُكَ فَأَزُوْرَكَ.

۵: تمنی. لکه: لَيْتَ لِي مَالًا فَأُنْفِقَ مِنْهُ.

۶: عرض. لکه: أَلَاتَنْزِلُ بِنَا فَتُصِيْبَ خَيْرًا.

حروف جازمه پنځه دي:

اِنْ. لَمْ. لَمَّا. لَامِ اَمرْ. لَام نهی

**مثالونه:**

لَمْ يَنْصُرْ. لَمَّا يَنْصُرْ. لِيَنْصُرْ. لَايَنْصُرْ. اِنْ تَنْصُرْ اَنْصُرْ

اِنْ شرطيه پر دوو جملو داخلیږي لکه: اِنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ. اولي جملې ته شرط او دوهمي جملې ته جزاء وايي. دغه اِنْ د مستقبل لپاره راځي که څه هم د ماضي پر صيغه راسي لکه اِنْ ضَرَبْتَ ضَرَبْتُ.

۱ – **فائده**: که د شرط جزاء جمله اسميه وي يا امر، نهي او يا دعاء وي نو د فاء په جزا کي راوړل ضروري دي لکه: اِنْ تَأْتِنِى فَأَنْتَ مُكْرَمٌ. اِنْ رَأَيْتَ زَيْدًا فَأَكْرِمْهُ. اِنْ اَتَاكَ عمرو فَلَا تُهِنه. اِنْ أَكْرَمْتَنِى فَجَزَاكَ اللهُ خَيْرًا.

۲ – **فائده**: که ماضي د دعاء لپاره راسي يا حرف شرط ورباندي راسي يا اسم موصول داخل وي نو د مستقبل په معنی کيږي.

## فصل: د افعالو عمل

پوه سئ چي هيڅ يو فعل داسي نسته چي عمل نه كوي. د عمل په اعتبار فعل پر دوه ډوله دی. ۱: معروف. ۲: مجهول.
بيا د فعل معروف دوه ډولونه دي. ۱: لازم. ۲: متعدي.

فعل معروف كه لازم وي او كه متعدي فاعل ته رفع وركوي لكه قَامَ زَيْدٌ. ضَرَبَ عَمْرٌو. او شپږو اسمو ته نصب وركوي چي دا دي:
۱: مفعول مطلق. ۲: مفعول فيه. ۳: مفعول معه. ۴: مفعول له. ۵: حال. ۶: تميز. بيان يې په منصوباتو كي تېر سوى دى.
مجهول فعل د فاعل پر ځاى مفعول به ته رفع وركوي او پاته مفعولاتو ته نصب وركوي. لكه: ضُرِبَ زَيْدٌ يَوْمُ الْجُمُعَةِ. اَمَامَ الْاَمِيْرِ ضَرْبًا شَدِيْدًا فِي دَارِهٖ تَأْدِيْبًا.
فعل مجهول ته فعل مالم يسم فاعله او د هغه مرفوع ته مفعول مالم يسم فاعله وايي.

## فعل متعدي

۱: متعدي په يوه مفعول لكه ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًوا.
۲: متعدي په دوو مفعولو. چي په هغو كي د يوه مفعول ذكر كول جائز دي لكه اَعْطَى. او كوم چي د هغه هم معنى وي لكه اَعْطَيْتُ زَيْدًا دِرْهَمًا. دلته اَعْطَيْتُ زَيْدًا ويل هم جائز دي.
۳: متعدي په دوو مفعولو چي د يوه مفعول راوړل جائز دي او هغه

افعال قلوب دي :

رَاَيْتُ. وَجَدْتُ. عَلِمْتُ. زَعَمْتُ. حَسِبْتُ. خِلْتُ. ظَنَنْتُ.

**مثالونه :**

(۱): رَاَيْتُ سَعِيْدًا ذَاهِبًا. (۲): وَجَدْتُ رَشِيْدًا عَالِمًا.

(۳): عَلِمْتُ عَمْرًا اَمِيْنًا. (۴): زَعَمْتُ اللهَ غَفُوْرًا. (د يقين لپاره)

(۵): زَعَمْتُ الشَّيْطَانَ شَكُوْرًا (د شک لپاره)

(٦): حَسِبْتُ زَيْدًا فَاضِلًا. (۷): خِلْتُ خَالِدًا قَائِمًا.

(۸): ظَنَنْتُ بَكْرًا نَائِمًا.

۴: متعدي په درو مفعولو. او هغه دادي: اَعْلَمَ. اَرَىٰ. اَنْبَاءَ. اَخْبَرَ. خَبَّرَ. نَبَّاءَ. حَدَّثَ.

لکه: اَعْلَمْتُ زَيْدًا عَمْرًا فَاضِلًا. اَرَيْتُ عَمْرًوا خَالِدًا نَائِمًا.

**افعال ناقصه** : دغه افعال د لازم کېدو سربېره یوازي په فاعل سره نه پوره کيږي بلکه د خبر محتاج هم وي. له همدې کبله ورته افعال ناقصه وايي. دغه افعال په جمله اسميه کي مسنداليه ته رفع او مسند ته نصب ورکوي. دغه افعال ديارلس دي :

كَانَ. صَارَ. اَصْبَحَ. اَمْسَىٰ وَاَضْحَىٰ. ظَلَّ. بَاتَ.

مَابَرِحَ. مَادَامَ. مَاانْفَكَّ. لَيْسَ. مَافَتِیٔ.

**مثالونه :**

(۱): كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا.
(۲): صَارَ الطِّيْنُ خَزَفًا.
(۳): اَصْبَحَ زَيْدٌ غَنِيًّا.
(۴): اَضْحَى زَيْدٌ حَاكِمًا.
(۵): اَمْسَى عَمْرٌو قَائِمًا.
(٦): ظَلَّ بَكْرٌ كَاتِبًا.
(۷): بَاتَ خَالِدٌ نَائِمًا.
(۸): اِجْلِسْ مَادَامَ زَيْدٌ جَالِسًا.
(۹): مَابَرِحَ خَالِدٌ صَائِمًا.
(۱۰): مَا انْفَكَّ وَحِيْدٌ عَاقِلًا.
(۱۱): مَافَتِئَ سَعِيْدٌ فَاضِلًا.
(۱۲): مَازَالَ بَكْرٌ عَالِمًا.
(۱۳): لَيْسَ زَيْدٌ قَائِمًا.

**افعال مقاربه** : افعال مقاربه ثلور دي : اَوْشَكَ، كَادَ، كَرُبَ، عَسَى. اسم ته رفع ورکوي او خبر ته نصب.

**مثالونه:**

(۱): عَسَى زَيْدٌ اَنْ يَخْرُجَ.
(۲): عَسَتِ الْمَرْاَةُ اَنْ تَقُوْمَ.
(۳): كَادَ عَمْرٌو يَذْهَبُ.
(۴): كَرُبَ خَالِدٌ يَجْلِسُ.
(۵): اَوْشَكَ بَكْرٌ اَنْ يَجِئَ.

**افعال مدح و ذم** : افعال مدح وذم هغه افعال دي چي د يو چا ښه والی او يا بدوالی بيانوي او هغه ثلور دي: بِئْسَ، سَاءَ، نِعْمَ، حَبَّذَا. اسم ' خبر ته رفع ورکوي.

بِئْسَ، سَاءَ: د ذم (بدی) لپاره دي. نِعْمَ، او حَبَّذَا. د مدح (ښيګڼي)

لپاره دي.

**مثالونه:**

(١): بِئْسَ الرَّجُلُ عَمْرٌو. (٢): سَاءَ الرَّجُلُ زَيْدٌ.

(٣): نِعْمَ الرَّجُلُ عَمْرٌو. (۴): حَبَّذَا زَيْدٌ.

**فائده:** کوم لفظ چي ددغه افعالو د فاعل وروسته وي هغه ته مخصوص بالمدح یا مخصوص بالذم وایي. شرط دادی چي فاعل به معرف باللام وي لکه نِعْمَ الرَّجُلُ عَمْرٌو. او یا معرف باللام ته مضاف وي لکه: نِعْمَ صَاحِبُ الْعِلْمِ بَكْرٌ. یا فاعل ضمیر مستتر وي چي تمیز یې نکره منصوبه وي لکه نِعْمَ رَجُلاً زیدٌ.. په دغه مثال کي د نعم فاعل په هُوَ نِعم کي مستتر (پټ) دی او رجلا منصوب تمیز دی ځکه هو مبهم دی.

په حَبَّذَا زَيْدٌ، کي حب فعل مدح دی او ذا د هغه فاعل دی او زید مخصوص بالمدح دی. همدارنګه بِئْسَ الرَّجُلُ عَمْرٌو او سَاءَ الرَّجُلُ زَيْدٌ.

**افعال تعجب:** د افعال تعجب دوې صیغې د هر ثلاثي مجرد څخه راځي. اول: مَاأَفْعَلَهُ. لکه: مَاأَحْسَنَ زَيْدًا. تقدیر یې دادی: ئُ شَيٍ أَحْسَنَ زَيْدًا. مَابمعنی أَیُّ شَيْءٍ د رفع په حالت کي مبتدا ده او احسن د رفع په حالت کي خبر دی او د احسن فاعل هو پکښي پټ دی او زیدا مفعول به دی.

ترکیب یې داسي دی: ما مبتدا، احسن فعل، په هغه کي ضمير هو فاعل، زيدا مفعول به. فعل د خپل فاعل او مفعول به سره جمله فعليه خبريه د مبتدا خبر، مبتدا او خبر جمله اسميه انشائيه سوه.

دوهم :اَفْعِلْ بِهِ. لکه: اَحْسِنْ بِزَيْدٍ، اَحْسِنْ. اَحسِن د امر صيغه ده په معنى د فعل ماضي. تقدير يې دادی: اَحْسَنَ زَيْدٌ. يعني صَارَ ذَا حُسْنٍ . او باء پکښي زائده ده.

## فصل: اسماء عامله

د اسماء عامله يوولس ډولونه دي:

۱: **اسماء شرطيه**: په معنى د اِنْ، او هغه نهه دي:

مَنْ. مَهْمَا. مَتَى. اِذْمَا. وَمَا. اَىٌّ، حَيْثُمَا. اَنَّى ، اَيْنَمَا

**مثالونه:**

مَنْ يُكْرِمْنِى اُكْرِمْهُ. مَهْمَا تَقْعُدْ اَقْعُدْ. مَتَى تَذْهَبْ اَذْهَبْ.

اِذْمَا تُسَافِرْ اُسَافِرْ. مَا تَشْتَرِ اَشْتَرِ. اَيُّهُمْ يَضْرِبْنِى اَضْرِبْهُ.

حَيْثُمَا تَقْعُدْ اَقْعُدْ. اَنَّى تَكْتُبْ اَكْتُبْ. اَيْنَمَا تَقْصُدْ اَقْصُدْ

۲: **اسماء افعال**: اسماء افعال نهه دي:

هَيْهَاتَ، شَتَّانَ. سَرْعَانَ. دُونَكَ، بَلْهَ، عَلَيْكَ، حَيَّهَلْ. رُوَيْدَ، هَا

**مثالونه:**

هَيْهَاتَ زَيْدٌ. شَتَّانَ زَيْدٌ وَعَمْرٌو. سَرْعَانَ عَمْرٌو

دغه درې د ماضي په معنى راځي او اسم ته د فاعليت په وجه رفع

ورکوي.

دُوْنَكَ عَمْرًا. بَلْهَ سَعِيْدًا. عَلَيْكَ بَكْرًا. حَيَّهَلِ الصَّلوٰةَ. رُوَيْدَ زَيْدًا.

هَاخَالِدًا.

دغه شپږ د امر حاضر په معنی راځي او اسم ته د مفعولیت په وجه نصب ورکوي.

**۳: اسم فاعل**: اسم فاعل د فعل معروف عمل کوي. یعني فاعل ته رفع او مفعول به ته نصب ورکوي، په دوو شرطو سره. یو دا چي اسم فاعل د حال یا استقبال په معنی وي، دوهم دا چي تر هغه مخکي مبتداء وي لکه زیدٌ قائمٌ ابوهُ. زَيْدٌ ضَارِبٌ ابوهُ عمرًا.

او یا موصوف وي لکه: مَرَرْتُ بِرَجُلٍ ضَارِبٍ اَبُوْهُ بَكْرًا.

او یا موصول وي لکه: جَاءَنِي الْقَائِمُ اَبُوْهُ. جَاءَنِي الضَّارِبُ اَبُوْهُ عَمْرًا.

او یا ذوالحال وي لکه: جَاءَنِي زَيْدٌ رَاكِبًا غُلَامُهُ فَرَسًا.

یا همزه استفهام وي لکه: اَضَارِبٌ زَيْدٌ عَمْرًا.

یا حرف نفي وي لکه: مَاقَائِمٌ زَيْدٌ.

کوم عمل چي قَامَ یا ضَرَبَ کوی. هغه عمل قَائِمٌ یا ضَارِبٌ هم کوي.

**۴: اسم مفعول**: اسم مفعول د فعل مجهول عمل کوي یعني مفعول مالم یسم فاعله ته رفع ورکوي. د اسم مفعول د عمل کولو هم دوه شرطونه دي:

اول: دا چي په معنی د حال یا استقبال وي.

دوهم: دا چي تر هغه مخکي مبتداء يا بل شی وي لکه: زَيْدٌ مَضْرُوْبٌ اَبُوْهُ، وَعَمْرٌو مُعْطًى غُلَامُهُ دِرْهَمًا. بَكْرٌ مَعْلُوْمٌ اِبْنُهُ فَاضِلًا. وَخَالِدٌ مُخْبَرٌ اِبْنُهُ عَمْرًا فَاضِلًا.

کوم عمل چي ضُرِبَ. اُعْطِیَ. عُلِمَ. اُخْبِرَ کوی. هغه عمل مَضْرُوْبٌ، مُعْطًى، مَعْلُوْمٌ هم کوي.

**۵: صفت مشبه**: صفت مشبه هم د خپل فعل عمل کوي په ذکر سوي شرط سره لکه: زَيْدٌ حَسَنٌ غُلَامُهُ.

کوم عمل چي حَسُنَ کوی. هغه عمل حَسَنٌ هم کوي.

**۶: اسم تفضیل**: د اسم تفضيل استعمال پر درې ډوله دی:

د مِنْ سره. لکه: زَيْدٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو.

د الف لام سره. لکه: زَيْدٌ اَفْضَلُ الْقَوْمِ.

د اضافت سره لکه: زَيْدٌ اَفْضَلُ الْقَوْمِ.

د اسم تفضيل عمل د هغه په فاعل کي وي او هغه ضمير هو دی چي پکښي پټ دی.

**۷: مصدر**: په شرط د دې چي مفعول مطلق نه وي، د خپل فعل عمل کوي لکه: اَعْجَبَنِی ضَرْبُ زَيْدٍ عَمْرًا.

**۸: اسم مضاف**: مضاف اليه مجرور کوي لکه: جَاءَنِی غُلَامُ زَيْدٍ، دلته لام په حقيقت کي مقدر دی، ځکه تقدير يې داسي دی: غُلَامٌ لِزَيْدٍ

۹ : **اسم تام**: تمیز ته نصب ورکوي او د اسم تام (پوره) کیدل یا په
تنوین سره وي لکه مَافِي السَّمَاءِ قَدَرُ رَاحَةٍ سَحَابًا.

یا په تقدیر تنوین سره لکه: عِنْدِيْ اَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا. زَيْدٌ اَكْثَرَ مِنْكَ مَالًا.

یا په نون تثنیه سره لکه : عِنْدِيْ قَفِيْزَانِ بُرًّا.

یا په نون جمع سره لکه : عِنْدِي عِشْرُوْنَ دِرْهَمًا.

۱۰ : **اسماء کنایه**. كَمْ . كَذَا.

كَم پر دوه ډوله دی: استفهامیه، خبریه.

استفهامیه کَم تمیز ته نصب ورکوي او كَذَا هم لکه: كَمْ رَجُلاً عِنْدَكَ عِنْدِيْ كَذَا دِرْهَمًا.

خبریه کم تمیز ته جر (زېر) ورکوي لکه: كَمْ مَالٍ اَنْفَقْتَ وَ كَمْ دَارٍ بَنَيْتَ ،او کله مِن جاریه د کَم خبریه پر تمیز راځي لکه په قران کریم کي دي: كَمْ مِنْ مَلَكٍ فِي السَّمٰوَاتِ.

## فصل:

## د عواملو دوهم ډول معنوي

عامل معنوي هغه دي چي په ښکاره الفاظو کي،موجود نه وي، دا پر دوه ډوله دي :

۱: ابتداء، یعني د اسم د عامل لفظي څخه خالي کیدل، مبتدا ته رفع ورکوي لکه : زَيْدٌ قَائِمٌ.په دغه جمله کي زید مبتدا ده چي د ابتداء څخه مرفوع دی او قائم خبر هم په مبتداء سره مرفوع دی. یعني په

دواړو مبتدا او خبر کي ابتداء عامل دی .
په دې اړه دوه نور مذهبونه دي، یو دا چي ابتدا په مبتدا کي عمل کوي او مبتدا په خبر کي. دوهم دا چي په مبتدا او خبر کي هر یو په یو بل کي عمل کوي یعني مبتدا په خبر کي او خبر په مبتدا کي .
۲: په فعل مضارع کي د ناصب او جازم نه کېدل. فعل مضارع ته رفع ورکوي لکه: يَضْرِبُ زَيْدٌ . په دغه جمله کي يضربُ مرفوع دی ځکه د ناصب او جازم څخه خالي دی .

## فصل: حروف غير عامله

حروف غیر عامله اووه لس ډوله دي:

۱: **حروف تنبيه**: اَلا، اَمَا، هَيَا ، دغه حروف پر جملې راځي د مخاطب د غفلت لیري کولو لپاره لکه: اِلَا زَيْدٌ قَائِمٌ. اَمَا عَمْرٌ وَنَائِمٌ. هَاانَا حَاضِرٌ.

۲: **حروف ايجاب**: نَعَمْ. بَلى. اَجَلْ. اِیْ. جَيْرَ. اِنَّ.
نَعَم، د مخکي خبري تصدیق کوي که هغه خبره په نفي کي وي یا په اثبات کي لکه یو څوک چي ووایي: مَاجَاءَ زَيْدٌ .نو په جواب کي ویل کيږي چي: نَعَم، یعني مَاجَاءَ زَيْدٌ ، همدارنګه کله چي وویل سي: ذَهَبَ عَمْرٌو ، نو په جواب کي ویل کيږي چي نَعَم، یعني ذَهَبَ عَمْرٌو ،
بَلى ،د منفي د اثبات لپاره راځي لکه: اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ؟ قَالُوْا بَلَى يَعْنِي بَلَى

أَنتَ رَبُّنَا ،

اَیْ د نَعَمْ په ډول دی، یوازې دا فرق دی چې اَیْ ، د استفهام وروسته د قسم سره راځي لکه یو څوک چې ووایي: اَقَامَ زَیْدٌ . په جواب کې وویل سي: اِیْ وَاللهِ ،

اَجَلْ او جَیْر هم د نَعَمْ په ډول دی مګر دلته قسم ضروري نه دی. هم دا ډول دی مګر استعمال یې کم دی .

۳: **حروف تفسیر**: اَیْ وَ اِنَّ ، لکه: جَاءَنِي زَیْدٌ اَیْ اَبُوْکَ. او په قرآن کریم کې دي: نَادَیْنَاهُ اَنْ یَآ اِبْرَاهِیْمَ یَعْنِی نَادَیْنَاهُ بِلَفْظِ هُمْ قَوْلُنَا یَا اِبْرَاهِیْمُ ،

۴: **حروف مصدریه**: او هغه درې دي: مَا وَاَنْ و اَنَّ .

مَا وَاَنْ .فعل د مصدر په معنی کوي لکه: ضَاقَتْ عَلَیْهِمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ اَیْ بِرُحْبِهَا وَ اَعْجَبَنِي اَنْ ضَرَبْتَ اَیْ ضَرْبُکَ.

اَنَّ .پر جمله اسمیه باندې داخلیږي لکه: بَلَغَنِيْ اَنَّ زَیْدًا نَائِمٌ اَیْ نَوْمُهُ .

۵: **حروف تحضیض**: او هغه څلور دي: اَلَّا . هَلَّا . لَوْمَا . لَوْلَا .

دغه حروف که پر فعل مضارع راسي نو پارول او شوق ورکول مقصد وي لکه: هَلَّا تُصَلِّي ؟ته ولي لمونځ نه کوې؟ او له همدې کبله ورته حروف تحضیض وایي ځکه د تحضیض معنی د پارولو او شوق ورکولو ده . ښه فکر وکړه .

او كه چيري دغه حروف پر فعل ماضي داخل وي نو بيا د مخاطب پښېمانه كول مقصد وي لكه: هَلَّاصَلَّيْتَ الْعَصْرَ ؟ ته ولي د مازديگر لمونځ ونه كړ، ځكه دې ته حروف تنديم هم وايي .

**٦ : حروف توقع**: او هغه قَدْ دى.دغه حرف فعل ماضي قريب كوي او د بېله شكه معنى وركوي، او په مضارع كي تقليل (لږوالى) معنى وركوي لكه: قَدْجَاءَ زَيْدٌ . زيد راغلى دى، يا بېله شكه زيد راغلى دى. او : قَدْيَجِئُ زَيْدٌ ، زيد كله ناكله راځي. او كله په مضارع كي هم د بېله شكه معنى وركوي لكه: قَدْ يَعْلَمُ اللهُ ،بېله شكه الله جَلَّ پوهيږي.

**۷ : حروف استفهام**: او هغه درې دي: مَا. هَمْزَه. هَلْ . دغه درې سره حروف د جملې په شروع كي راځي لكه: مَااِسْمُكَ؟ اَزَيْدٌ قَائِمٌ؟ هَلْ زَيْدٌ قَائِمٌ؟.

**۸: حرف ردع**: او هغه كَلَّا دى. دغه لفظ د انكار او منع لپاره راځي لكه يو څوك چي ووايي: كَفَرَ زَيْدٌ . نو په جواب كي وويل سي: كَلَّا ، هيڅكله نه .

او كَلَّا د حَقًّا يعني بېله شكه، په معنى هم راځي لكه: كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ، بېله شكه ډېر ژر به تاسو پوه سئ.

**۹ : تنوين**: او دا څو ډوله وي چي په هغو كي دوه دا دي:

۱: تمکن لکه: زَيْدٌ ، ۲: عوض لکه: يَوْمَئِذٍ .

يَوْمٌ د اِذْ. كَانَ. كَذَا . په عوض کي ويل کيږي او حِيْنَئِذٍ، د حِيْنَ اِذْكَانَ كَذَا ، پر ځای ويل کيږي .

**۱۰ : نون تاکيد**: لکه اِضْرِبَنَّ، اِضْرِبَنْ .

**۱۱ : لام مفتوحه**: د تاکيد لپاره راځي لکه: لَزَيْدٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو.

**۱۲ : حروف زيادت**: او هغه اته دي: اِنْ. اَنْ. مَا. لَا. مِنْ. كَاف. بَا. لَام مثالونه :

مَا اِنْ زَيْدٌ قَائِمٌ. فَلَمَّا اَنْ جَآءَ الْبَشِيْرُ. اِذْ مَا تَخْرُجُ اَخْرُجْ. مَاجَاءَنِي زَيْدٌ وَلَاعَمْرٌو. مَاجَاءَنِي مِنْ اَحَدٍ. لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ. مَازَيْدٌ بِقَائِمٍ. رَدِفَ لَكُمْ.

**۱۲ : حروف شرط**: اَمَّا. لَوْ .

اَمَّا . د تفسير لپاره راځي او فَا د هغه په جواب کي راوړل ضروري دي.

لکه د الله ﷻ دغه فرمان: فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَّسَعِيْدٌ فَاَمَّا الَّذِيْنَ شَقُوْا فَفِي النَّارِ. وَاَمَّا الَّذِيْنَ سُعِدُوْا فَفِي الْجَنَّةِ .

لَوْ .د دوهمي جملې نفي ثرګندوي د مخکي جملې د نفي کېدو په سبب لکه په قرآن کريم کي دي: لَوْكَانَ فِيْهِمَا اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا . که په ځمکه او آسمان کي ډېر خدايان وای ماسوا د الله ﷻ ثخه نو دواړه به تباه سوي وای، مگر ثرنگه چي ډېر خدايان نسته ځکه نو تباه سوي نه دي.

۱۴: لَوْلَا . دا د بلي خبري نفي کول د مخکي خَبَري د کېدو په سبب لکه : لَوْلَا زَيْدٌ لَهَلَکَ عَمرٌو . که چيري زيد نه واى نو عمرو به هلاک سوى واى. (مګر زيد وو ځکه نو عمرو هلاک نه سو) .

۱۵: مَا بمعنى مَادَامَ: لکه: اَقُوْمُ مَاجَلَسَ الْاَمِيْرُ .زه به ولاړ يم تر څو چي امير کښيني.

۱٦ : **حروف عطف**: او هغه لس دي: (۱): واؤ. (۲): فَـا. (۳): ثُمَّ. (۴): حَتّٰی. (۵): اَمَّا. (٦): اَوْ. (۷): اَمْ. (۸): لَا. (۹): بَـلْ. (۱۰): لٰكِنَّ ،

تمت بالخير

